# جانانه کله

# خو راپیښنه وکړه

## د باز محمد عابد

## شعرونو ټولګه

د انټیرنیټ په مخ ترتیب کوونکي : سمسور حبیبي

# له عابد نه مې باز ډېر خوښېږي

د ټولو عابدانو په مخ کې دې دیوال وي. زه زموږ د بهیرونو او زموږ د بنداروونو بازمحمد عابد یادوم. څو ځلې مې ورته ویلي دي چې هلکه بازه ! که نور نومونه دربانديږ دریدلي دي نو باز خو دې خپل نوم دی او د عابد پر ځای د غزلونو په مقطع کې باز راوله. او بیا له تا نه خو هغه ظالم باز نه جوړوو چې د زرکو او زاڼو او سپینو کوترو په وینو یې منګولې سرې وي. باز په موسکا کې راته وایي چې نه، زه د عابد نوم نه بدلوم. ځکه چې دا نوم پر ما باندې "چا " ایښی دی.موږ نه پوهیږو چې هغه ښکلی څوک به څوک وي چې باز یې عابد کړی دی. باز سره له دې چې عابد پاتې شوی، بیا یې هم دا ښکلې ګناه هر ځل کړې ده چې د غزل او سندرو په زرکو، زاڼو او کوترو یې د خپل خیال منګولې سرې کړ ي دي. د عابد یا په بل عبارت زموږ د بنداروونو او بهیرونو د باز دا ظلم دومره نازنین دی چې انصاف ورته په دوه لاسي سلامونه کوي. زه د باز د ګرانو لوستونکو سره د باز د کتاب په باب نه غږیږم. زه ډېرې خبرې د باز په هکله لرم. باز سره له دې چې د افغانستان د څه کم دوی لسیزې غمیزې نه یې ډېر دردونه اخیستي او د ژوند شېبې یې پرې شاعرانه کړي دي. فطرتاً هم شاعر دی د باز یو ورور د روسانو د شوبلې تر زنځیرونو لاندې شهید شوی دی او د بل ورور یوه پښه یې د روسانو په ماین غوڅه شوې ده. دا غمیزې او دردونه باز د خپل فطري شاعرانه طبعې په رنګ کې رنګ کړي او غزلیزې کړې دي. باز دا ټولې دردونکې پیښې د تنکي زلمیتوب په تنکیو شیبو کې لیدلې او د خپل تنکي غزل پر اوږو یې را رسولې دي. کله کله د غمونو او دردونو دا بارونه دومره ردانه شي چې د باز د غزلونو پر تنکۍ ملا نه راوړل کیږي. نو خامخا به د ده د زړه پر دمه ځای کې دمه جوړوي. په راتلونکې وخت کې به دا سندریز بارونه په ډېر هنر د غزلونو او سندرو پر اوږو داسې راوړي چې نه یې د غزلونو او سندرو ملاوې ماتې شي او نه سندریز بارونه ولویږي. باز لوړ دنګ ، سور او سپین سړی نه دی، بس یو موټی لونګ دی چې د غزل د سړنۍ بالغې پر سینه له زنګیدو سره جوړیږي. سترګې یې د باز غوندې ښکلې دي. کله کله یې سترګې سرې سرې ردې هم پیدا کوي

چې د دې لنډۍ د رايادولو او انځورولو هنداري ښکاري:

ستــــــرګې دې سرې ردې ردې دي
ردې ردې د ښامارانو سترګې وينه

د ښارمار ذکر راغی. د مارانو او ښامارانو په ليدو به ځيني خلک بوږنيږي خو باز هغه شاعر دی چې په هر څه کې ښکلا لټوي. دی په خپل غزل کې ځای ځای د مار هغه هم د "مارې" د ښايست يادونه کوي. باز وايي چې دمار سترګې مې ډېرې خوښې دي. وايي چې د مار ميناتوري شوې ځرمن کې چې خدای کوم ښايست ځای کړی دی په ډېرو موزونو ښايستونو کې هم نه شته.

هــــوده د ميــــنې پــــر اثر نه کوي
د سينې دښته کې مــــې مــــاره ګرځي
لړ مې د مينې پـــه هـــوده کې واخله
روح مې په بين دې لـــکه مــــاره تړم
د روح سرود مې ورتــــه بــــين غږوي
د سينې دښتې تــه مې مـــــاره راځي
د روح بين غږومه چيـــرته ماره لټوم
اوبو غوندې د غره لمن کې ماره لټوم

پورتنۍ له پرتمه ډکه ښکلاپرستي د باز ځانګړنه ده. " له سرو سترګو تر سرو سترګو" په شعر کې يې د ماشومتوب په خاورو او دوړو د سرو سترګو انځور کښلی. په ځوانۍ کې يې د هغو سترګو انځور کښلی چې د ژوند په هينداره کې يې د نظر له لاسه د ارمان تصوير ښوييږي. باز ته د ده د غزل په سر سوګند ورکوو چې د

سرو سترګو دا ډول لوبې به پریږدي. عابد دې د تورو او کلماتو سرکش ښامار ته د غزل شپېلۍ وغږوي او د ښایست لعل دې ترې راولجه کړي. باز دې د خیال سترګې د سندرو او غزلونو پر مرغانو سرې کاندي.
موږ څه کم دوی لسیزې غمیزې او تراژیدۍ ځپلي خلک یو خو د غره غوندې د روند انتظار مو د صبر پر اوږو

تر دې دمه رارســـــولـــــــی دی.
ستا د راتـــلـــو په انتظار انتظار
دا سې ولاړ یـــــم لـکه غر وي غلي
ستا د وصال روژه په خوله پاتې یم
د یتیـــمانــــــو خو اختر وي غلی

لکه مخکې چې مو وویل باز فطرتاً د شاعرانه اروا څښتن دی. دی له یوې ورځې نه بلې ته پسې غزلیز کیږي. له هغې ورځې را په دې خوا چې زموږ د ادبي بنډارونو او افغان ادبي بهیر غونډې پیل شوې د باز غزل د څپو د ښایستونو ګلکځونو ته منګولې وغځولې. حالات لولپه دي خو دا چې باز د وطن ګلورین او غزلیز پسرلي ” استاد محمد صدیق پسرلي “ د هنر تر سیوري لاندې راروان دی، نو دې لولپه حالاتو ته هم د غزل د ښایست وسله نه ږدي.

سیوری مې په سر د پسرلي ګرځي
شکر د ورېمو د بهــــــیر غـــړی یم

د باز غزل لکه د ګلاب پاڼه، لکه د پرخې دانه هم ښکلی دی او هم روڼ او بې تکلفه.

په رخسار یې لکه پرخه نه ځـــاییږم
دا رنګینه حادثه مې لکه لمر خوري

باز د يوې شاعرۍ او مضطربې اروا څښتن دی. ځان لا زړی ورته ښکاري، د شين کيدو او غوړيدو هيله لري. سره له دې چې د غزل غوټۍ يې په غوړيدو دي، خو ويريږي چې ښکلي به مې وغورځوي:

مه مې غورځـــوه د غـورځيدو نه يم
و مې کـــــره شين بـــه شمه زړی يم
مينه غواړم، زړه غواړم له ښکليو نه
سوال يمه لا هغسې نيــــــمګړی يم

د باز په شخصيت کې مينه، ښکلا پرستي، عاطفه او صميميت ټول راټول دي. او دا ټول هغه څه دي چې د شعر روح او وجود ترې جوړيږي. باز د ماشومتوب خاطرې او د ژوند ځينې پيښې لري چې موږ په بار بار اوريدلي دي او بيا يې هم په اوريدو نه مړيږو. د ماشومتوب يوه عاطفي کيسه يې ددې له پاره دلته را اخلم چې د ده په شاعرانه شخصيت او د ده په اوسنيو او راتلونکو شعرونو کې به يې عاطفي اغيز خامخا وي:

" باز ماشوم و. د نورو ماشومانو غوندې د ګوډي پران لوبه خوښه وه. خپل ګوډي پران ته يې د دې له پاره ښيښه يي تار اچولی و چې له ګوډي پرانونو سره د جنګ په وخت کې يې تار پرې نه شي. ګوډي پران يې هوا ته جګ کړی و. ګوډي پران د وزې شاهين په شان حملې کولې، په چل چل يې ښيښه يي تار را کش کاوه. د ګوډي پران ښيښه يي تار يې د بل ماشوم د ګوډي پران پر ځای په آسمان کې د يوې الوتونکې توتکۍ له تنکۍ مرۍ نه راتاو شو. د تار د کشولو سره سم بې سره توتکۍ لاندې راپريوته او د باز په پښو کې ولويده. بازد توتکيو په باب ډيرې کيسې اوريدلې وې، چې دا فقيره مرغۍ ده . د دې مرګ لويه ګناه ده. د باز په سترګو کې اوښکې راغلې. د ښيښه يي تار غوټه يې له لاسه ولويده او ګوډي پران لکه د وزر ماتي مرغه ورو ورو رالويده او اخر په يوه ونه کې بند شو. باز توتکۍ په کوچنيو لاسونو کې راواخيسته. نور ملګري ماشومان يې هم دهغې په وير کې له ځانه سره ملګري کړل. د باز په سترګو کې اوښکې پنډې وې او نورو ملګرو د ده په سترګو کې غمګينې او وارخطا سترګې ګنډلې وې. باز توتکۍ په کفن کې پټه کړه. کوچنوټي قبر يې ورته جوړ کړ او ماښام کې يې حلوا پسې وايسته. "

دا عاطفه او داسې نورې ډېرې عاطفې د باز په روح کې روانې دي. زه خو فکر کوم چې دا عاطفې او دا تراژیدۍ د باز په غزل او شعر کې لا پوره پخې شوي نه دي. دی به په غزل او شعر کې هغه وخت قیامت کوي چې دا عاطفې، مینې او تراژیدۍ پوخوالي ته ورسوي او خامې ترې پاتې نه شي.
د پسرلي په وخت کې له کلیو نه غرونو او شنو ورشوګانو ته کډې لیږدي، نو کله چې د بانډو میلې ته نیژدې شي، پیغلوټې نجونې له قافلې نه د هوسیو په څیر په ترپکو ترپکو مخکې شي. په ترپ کې میلې ته ځانونه ورسوي. د بانډو جونګړې او څیرونه جارو کړي. اورونه بل کړي او له چینو نه اوبه راوړي. همداسې د باز د شعر قافله ورو ورو روانه ده. د خیال پیغلوټې نجونې یې په غزلیزو ګامونو د خپل شعر له قافلې نه وړاندې روانې دي چې د ښکلا په ورشو او میله کې ورته دمه ځای وګوري.
د شیبو شاعرانه کول د شعار دنده ده. باز باید د ښایست او آرمان توتکۍ د شعر په دم راژوندۍ کړي. د باز د غزل مسرې باید د هغې شوبلې د زنځیرونو انځور وي چې زموږ شیبې او آرمانونه یې شهیدان کړي دي.
د شهـــــیدو ګلغـــــــوټېو جنازې وي
زموږ کلي ته یې غیږ کې باغوان راوړي
د باز په غزل کې ساده ګي او رواني ده. ساده ګي په دې مانا نه چې ګنې شعریت په کې نه شته. زما مطلب دا دی چې بې ځایه او بې مفهومه ابهام، له ښکلا نه لیرې پیچلتیا او تصنع په کې نه شته. د بې مفهومه ابهام هغه پیچومی نه لري چې د لوستونکو او اوریدونکو د ذوق پښې په کې تښاکې شي. ډېرې غزلې یې په لنډ او روان بحر کې دي. د غزلونو مسرې یې هم ډېر ځله له پنځو بیتونو اخوا نه اوړي. د شاعرانه طبعې الوت یې د هغه نه سترې کیدونکي مرغه غوندې نه دی چې تر ډېره په آسمان کې وګرځي راوګرځي. بس د باز د شاعرانه طبعې الوت د زرکې غوندې لنډ دی او یا کله کله د باز د غوټې په څیر تیز او لنډ دی چې په لنډه فاصله کې په یوه غوټه ښکار کوي.
د باز په غزلونو کې د غمیو په څیر تراشلي او ځلیدونکي مسرې ډېرې پیدا کولی شو. که په ډېرو غزلونو کې یې ښکلې او د لوړ شعریت لرونکې مسرې نه وي هم خو له شعریت او شاعرانه مفهوم نه به ډېرې راپریوتې هم

نه وي. باز خپل نوي ویل شوي شعرونه موږ ته تل په ویره ویره اوروي. غزلونه یې ډېر ځله زموږ د ځوانو شاعرانو، لیکوالو او کره کتونکو ملګرو هر یو نورالحبیب نثار، مصطفی سالک او حنیف خلیل د ډېرغوڅ خو ښکلي نقد (کره کتنې) د ځلوونکو او تراشونکو تیشو له تیرو څوکو تیریږي. ځکه خو د باز په شعرونو کې کمزوري شعرونه لږ موندل کیږي. د باز غزل زموږ د بهیرونو او بنداړونو نور ملګري هم اوري او لولي، خو هغوی لږه ګوزاره ورسره کوي او کله کله یې پر کمزورو مسرو هم سترګې پټوي.
د باز په غزلونو کې یو بل ټکي ته هم اشاره باید وشي چې هغه د سندریز وزن درلودل دي. د دې ډول وزن ځوند په موسیقۍ کې یو په دوه کیدای شي.

ځه ښه و چې جانان په تصور کې راته ویلې
راځه کینه دمه شه زوروره چـــــیرته ځې؟
د شر د سوداګرو قافلې بازار تــــه راغلې
لږ وار وکړه د امن پیغمبره چیرتــــه ځې؟

د باز له شعر نه زیات شعریت د ده په ناسته او د ژوند سره په شاعرانه برخورد کې دی. باز لا د خپل زړه کولپ د شعر او غزل په کیلي نه و خلاص کړی چې صوفیانه او رندانه شعرونه به یې لوستل. د خانقاه په تاخ کې به یې ډیوې بلولې، اوږدې شپې به یې په الله هو رونولې او د خپل پیر په صوفیانه کړۍ کې له ټولو مریدانو کشر مرید و. په غزلیز باګرام کې د افغانستان د اواره او مهاجرو شاعرانو ځینې شوزنده او له درده ډک شعرونه به یې د سپیدې، خپلواکۍ او ځینو نورو خپرونو کې لوستل او د ده پر شاعرانه روح یې سندریزه زلزله وروسته. د استاد پسرلي د زرکې ترانو یې روح د سترې زرکې په څیر د وطن په سردرد کې وګرځاوه. د استاد شپون د مور ویرنې شهکار شعر په وار وار وژړاوه.
" میلون شپږ شلې نه دي چې په ګوتو دې شمیرلی"

د مور د ویرنې دې نیم بیتي د ده د یاد او احساس پر دښته د وطن یو نیم میلون شهیدان د ع=غاټولو په شان راوټوکول. ده په دې غاټولو کې د خپل شهید ورور انځور لټاوه چې پر سترګو به یې د اوښکو مهر ولګیده او د یوې سلګۍ سره به ترینه ټول لکه په غشو لګیدلي کبلي وتښتیدل. "بس د لمدو ختو لړې او به دارو وي"

د شعر د ښاپیرۍ د جادو د شین ښکي طوطي له منبوکې یې کیلي راواخیسته او د خپل زړه کولپ یې پرې خلاص کړ. د نقشبندیه پیر په ځای یې د شعر له پیره نه لاس نیوی وکړ:

تعبیر یې د سندرو د مغان له پیره غواړم
بیګاه راته په خوب کې پرښته وه چې راتله
د خانقاه پر ځای یې په خپل زړه کې د شعر ډیوې ولګولې:
دا چې زه یې سره کمبه کړم، آتشي جمال د چا و؟
ابدي فراق یې راکړ، د یو شپې وصال د چا و؟
زما ختې تمنا د میخانې د جام لرله
خو کوزه یې د جومات کړم، په لمسون کلال د چا و؟
د خستې په ښاریه کې د نیستۍ سودا وه ګرانه
د عابد خودي په تن وه، وایه نور مجال د چا و؟

د باز په غزلیزه شاعرۍ باندې "د نکریزو پاڼه" نوم اینښودل شوی دی. د نکریزو پاڼه په خپل ظاهري شین والي کې د ښایست باطني سره هم لري. د نکریزو پاڼه شاعرانه ذوق ته عجیبې ښکلاوې وریادوي. د ناوې سره لاسونه، د اختر ورځ او یا پر نکریزو ټکور شوي لاسونه. د نکریزو پاڼه دا ټولې ښکلاوې په خپلباطن کې لري. خو دا باطني ښکلاوې هغه وخت ظاهروي چې د نکریزو پاڼه پاڼه په درغنې میده کاندي. د باز د غزلونو ډېر غزلتوري د نکریزو د پاڼو په څیر د حالاتو او کیفیاتو په درغنې میده شوي او د هنر د ناوې لاسونه پرې سره شوي دي.

د باز د شاعرۍ د بنیاد خښته د کابل له درد او د باګرام د تغزل له رنګ نه جوړه شوې ده. خدای (ج) دې باز ته ډېر عمر ورکړي چې د غزلپرستو او شعر پرستو له پاره د سندرو غزلیزه او ښکلې ماڼۍ ودانه کړي.

چې مې شعور ته راشي شعر راکوي
په لاشعور کې پرښته ساتمه
په مخه مو ژیړي ګلونه
کاروان، پېښور، ناصر باغ نوی کمپ
۱۳۷۵/۹/۲۶
۱۶/۱۲/۱۹۹۶

# منګی

قدر یې زیات شو چې ستي شو په شر منګی
ځکه یې پیغلې جینکۍ اوس وړي په سر منګی

له پښو نه سره پورې و اخلي خوشبویي د جونو
کلاله خرنګ دې جوړ کړی په هنر منګی

غوږ یې د زړه درزا ته ایښی وي په ترخ کې د یار
له پټو زړونو باخبر وي بې خبر منګی

په ډکیدو کې چې ختڅ حتڅ په خندا و خندیږي
مظاهره کړي د وصال په مازیګر منګی

مور ته به څه بهانه کوې ته لا وړه یې ګلې
چې د اشنا سره دې مات کړ په ګودر منګی

عابده کاش چې ته کلال وای جوړول دې منګي
له خپلې ختې نه دې جوړ وای د دلبر منګی

# غزل

هوش مې د مينې په لمسون د ليونو پسې ځي
ترې نظر مې ستا د چم کڅو کوڅو پسې ځي

زه خو دا ستا د غمه شپه او ورځ لوګی لوګی يم
دا خلک نه پوهيږي هسې سپيلنو پسې ځي

دا دې کوم راز دی د وصال و فراق نه پوهيږم
ګله چې پرخه ستا له مخ نه پلوشو پسې ځي

راته نسيم په غوږ کې وی چې پرې غزل وليکه
د يار خوشبو دې راسره غږ د پردو پسې ځي

شور ګډ شو خلکو وی چې حسن په بازار خرڅيږي
يوسف د مصر د يعقوب د اخيستو پسې ځي

دا قافله د ژوند عابده مخ په وړاندې درومي
خومره چې تللي دي راغلي به په تلو پسې ځي

# غزل

چې له ليمو نه مې نـظر پـــريـــوزي
د ښکلو قدر مې پـــــه سر پريوزي

ارمان مې د اسې نيمه خوا پاتې شي
لکه چې بې ديـــد نــــه لمر پريوزي
ستا د وصال د يـــوې شپې په بدل
داغ مې د هجر پـــه ځيګر پريوزي
د انتظار په للـــمـــو للـــمو د ښتو
تور مې اوبه شي له بصـــر پريوزي
ته چې د کاڼي زړه سيـــــنه کې لرې
زمـــــا د آه بــــــه څه اثر پريوزي
اوس په هجران کې د وصال يادونه
لـــــــکه مرهم چې په پرهر پريوزي
هســــې پنا شوې د عابد له سترګو
لکه چــــې ستورى د سحر پريوزي

# غزل

چې تصور مې د صنم ورانیږي
جوړ سلسله د هر ستم ورانیږي

په دغه بر کلي کې ښنګه شور دی
ملګرو بیا د چا حرم ورانیږي

خدای خبر بیا دي په زړه څه تیریږي
چې ستا کوڅه کې مې قدم ورانیږي

عابده داسې ښاریه کې اوسې
وران خو لا څه چې په کې سم ورانیږي

# غزل

د غیرت او ننگ جــذبه لا د پښتون شته
څو يې تن کې لا يــوه قطره د خــــون شته

که ماضي په زنده ګی چړې ســـرې کــړې
امیدونه مستقبل ته د ژونــــدون شــتـه

د ظلمت تیاری که شته دی لا خــو شپه ده
پسې وار هم د روښـــانـه سباوون شته

که فلک رابـــانـدې خپلې چارې وکړې
راتـــه زيـرى د زمـــا د اوښـــتون شته

که د وخت څپيړو مـــوږ ســره جلا کړو
دې ټوټې ټوټې ولس ته پـیوستون شته

که منزل څومره مشکل وي پروا نه شته
حوصله لا د عـــابـــد سره د یون شته

# غزل

د فاصلو لړۍ د مینې له نظر تیرېږي
احساس مې وبوږني سلګۍ شي له بصر تیرېږي

د لاشعور نه یې شعور ته کډه کړې ده نن
جانان زما د سینې دښت کې په سفر تیرېږي

تکل مې کړی دی چې لارې د ګودر ښکلووم
ډېرې پېغلوټې په دې لار هر مازیګر تیرېږي

د زړه جونګړه ورانوي په یو نظر د جمال
زما قاتل زما په سیمه بې خطر تیرېږي

د سباوون زیرې د لمر بانه موسکې موسکې کړي
د سپیدې څرک چې د افق په سم او غر تیرېږي

# غزل

دا چې زه يې سره لمبه کړم، آتشي جـــمـــــال د چا و؟
ابدي فراق يې راکړ، د يوې شپې وصــــــال د چـاو؟

زنــګيدمه،تـاويـــدمه د پريـــشانه زلــفوټال کـــې
اوس چې خاورو کې لغړيږم، ها رنګينه خيال د چاو؟

زمـــــا خټـــې تـــمـــنا د ميکـــــدې د جـام لرله
خو کوزه يې د جومات کړم، په لمسون کلال د چا و؟

د هستۍ په ښاريه کې د نيستۍ سودا وه ګـــــرانه
د عابد خودي په تن وه وايه نور مـــجـــال د چاو؟

# غزل

پرخه د سحر چې د ازغو په څوکو وزانګي
اوښکې مې ډيوې شي د ښو په څوکو وزانګي

دا د زړه کنډول به ورته ډک له ارمانونو وړم
يار ته چې د عشق د منارو په څوکو وزانګي

ډک د تخيل د رنګينيو فطرتي غزل
پرېږده چې جانان ته د بارخو په څوکو وزانګي

طمعه د عابد لا په زړګي کې هسې طمعه شي
لمر چې د غروب د تورو غرو په څوکو وزانګي.

# غزل

زما قدم چې د وصال تر کـــــوره ونــــــه رســـي
د يار ښکلا دې د کمال تــــر کـــــــوره ونه رسي

چې پرې زما د اميدونو ستوري ونه بـــــريــښي
د رخسار خط دې د هلال تر کـــــوره ونــــه رسي

چې بوړنيدلي احساسات مې نيمه خوا پاتې کړي
ستا مرتبه دې د جــــلال تــــــر کـــوره ونه رسي

چې دې منګى ما سره لوبو کې مـات شوى نه وي
ستا سوال زاري دې د کلال تر کــــوره ونه رسي

ملګرو بڼ کې به ګـــلـــونــــه د غـــــزل وکري
د عابد خيال که د زوال تـــر کـــوره ونه رسي

# غزل

جلوې وې ستا د حسن طبیعت یې بـــــــوړناوه
ارمان چې زما سترګو د لیدو تــــوان نــــه لاره

جذبه د مینوشۍ لا خوره نــــــه وه په مخفل کې
ساقي چې به هر کس په سترګو سترګو کې څاره

ستا غم ته یې د زړه کور کې ځای ورکړلو دلـــبره
پښتون و زما عشق د پښتنو پت یې پـــــالـــه

(( هر څو که د هجران ځینې وصال زرغونه کیږي
دهقان د ازل کاش چې د غــــــه تخم نه کاره ))*

ما وی ګنې عابد یې روان کړی دی تــــوبــــې ته
زاهد په خلوتګاه کې په جامونو ونــــمـــانځـــه

* د حافظ شیرازي د یوه بیت ژباړه

# غزل

((د شفق په حنا سره کړل د فطرت نــاوې لاسونه)) *
بیا ساقي ورته تیار کړل د کـــــوثـــــرو ډک جامونه

طلایي وړانګې خورې شوې د اسمان په کنارو کې
طبیعت دی بوربنیدلی د مستۍ وایـــــي رازونـــــه

د ماضي په تورو لارو د روښان ســفـر منــــزل دی
مستقبل د حال په ژبه د خوښۍ کــــــړي اوازونه

تخیل چې افاقي شي انسان ووځي لــه هستۍ نه
د نیستۍ هسې مقام کې یې حاصل شي مقامونه

دی قدرت په کائیناتو مهربان دومره عــــابـــــده
د سپرلي تازه هوا ده پرې تازه شول دماغـــــونـــه

* پورتنی نیم بیتی د حمزه بابا(رح) دی

# غزل

زما عشق او ستا ارمان غـــــاړه غـــــړې
لکه وي چې ټول جهان غـــــاړه غـــــړې

احساسات مې په حالاتو ژړا کـــانـــدي
اوښکې، وینې او چشمان غـــــاړه غړې

دا هم وخت دی چې پر ما باندې تیریـږي
زما ژوند او ستا هجـــران غـــاړه غـــړې

هغه هم راته یـــادیــــږي د زړه ســـره
چې به سیـــل ته وو روان غـــــاړه غړې

دې ته هم مې د امید سترګې په لار دي
بیا عابد شي او جـــانـــان غاړه غړې

# غزل

په تصور چې مې دلبر خـــــور شي
لکه يلدا کې چې سحر خـــور شي

چې په ښکلو کو مې نظر خــور شي
خاطر مې ستا د زړه پر سر خور شي

پالي زمونږه پال چپه لـــــيــــدلی
خير يادوو خو راته شر خـــور شي

باګرامه* ستا په سندريــزه سيمه
سروش د شعر راشي اثر خـور شي

ديدار دې هسې پر عابد ولـــګي
لکه پر ستورو چې قمر خـور شي

باګرام د پيښور زوړ نوم دی

# غزل

څڅوب د میني مې هر دم د زړه لــــه بــــــام پریوځي
لکه چې څاڅکی څاڅکی می، له سوري جام پریوځي

د محبت د ازموینې دې دســــــتور تــــــه ګــــوره
چې درنې هیلې مې ستا پښو ته له ناکام پـــریــوځي

تیارې خو ښې دي د رڼا ترینه امید کیدای شــــــي
پر سپین رخسار چې تاوې زلفې لکه لام پریــــوځي

داسې محفل کې به مینا په ګډیدو نه راځــــــــي؟!
چې د ساقي د سترګو ست په خاص و عام پریوځي

تقسیم د میوو د ی چې کیږي د آدم پــــــه بچـــو
په داسې حال کې هم عابد د چا له پام پـــــریــوځي

# غزل

ستړی ستړی ریز مریز یم، د ژوندون په گرانه لاره
لکه غرِوي چا ته شوی، د جنون په گرانه لاره

د وجود په ملکيت مې، د خونريز لښکر قبضه ده
هر احساس زخمي زخمي دی، د بدلون په گرانه لاره

دا منزل مو ناتمام دی، دغه هيلي سرابي دي
د نایاب سفر په لوري، د گردون په گرانه لاره

قافله د پښتنو ده، د دې دور بې سالاره
يو جرس د نهيلو شي، تل د يون په گرانه لاره

يو اقرار دی بس عابد ، چې پښتو سره مو کړی
که مشکل وي هم يې پالو ، د پښتون په گرانه لاره

# غزل

ګلونه وشینده پـــسرلـــــیه لـر او بر په سیمه
غوټۍ غوټۍ پـــه غوړیدو شه د دلبر په سیمه

د نظرونو په تـارونــــو الـتـــفــــات د مینې
ټوله فضا شي سندریـــزه د نظر پـــــه سیمه

راځه چې نن د رقیب مخکې یو له بـله زار شو
خور چې زما او ستا د مینې شي خبر په سیمه

یوه حیا داره پښتنه وه بې اســــرې ملــګرو
وه غریو نیولی چې راتلله د خیبر په سیـــمه

# غزل

لا د عدم په غیږ کې پروت وم چې شرر دې راکړ
کالبوت د مینې ته اشـــــنا د روح وزر دې راکړ

زما معصومې ارزو سترګې لا پرانیستې نه وې
لا مــــې کتـــلي درتـــه نه و چې نظر دې راکړ

ما د ساحل په لویه لاره کـــې ستـــا لار څارله
د ژوند بیړۍ دې راته کړه سمـــنـــدر دې راکړ

د زړه پر باغ مې میلمنه شوې د جـــمال پرښتې
د عشق کعبه دې راته وښوده ثـــمـــر دې راکړ

لا د الستـه په سجدو ومه د نور کـــعبــې تـــه
لا مې سر نه و پورته کړی چې خبر دې راکـــــړ

د تخیل په رنګینو کې مې غـــزل غـــزل شوې
احساس د شعر دې راته کړلو هـــنر دې راکـــړ

# غزل

ستا نه لوګې ستا له نظره لـــــوګـــی
لکه چې پرخه شي لــــه لمـــره لوګی

نن خو دا تنده مـــاتـــومه ســـاقي
توبه مې شه ستا له ســـاغـــره لوګی

د جانان غم په ښـــادۍ نـه ورکـــوم
دې عاشورا نه شه اخـــتره لـــوګی

د کوم شپونکي کوډلې اور اخیستی؟
هلته چې وخـــتو لــــه غــره لوګی

په کې حمزه غوندې هستي او سیـده
عابده ځان کړه له خیـــبره لــوګـی

# غزل

ګله چې ستا پر مخ رانښکون خور شي ښکلا خوره شي
زما د زړه د هر ارمــــــان پـــــه تن کې ساه خوره شي

چې د خپل ذات په آيينه کې خـــــپل تصوير وګورم
احساس مې وبوږني پر ذهن مې رڼــــا خـــوره شي

ذرې ذرې پـــــلـــوشـــــې مستې وځليږي
چې د سحر په افق سترګه د سبـــا خــــوره شي

د تصور فضا مې ټوله سندريـــــــزه ښــــکاري
چې د جانان پر سرکو شونډو مې موسکا خوره شي

په يو نظر کتو يې هسې بې هوشي خـــــوره کــړه
لکه جلوه د کوه طور چې په موسى خــــوره شــي

# غزل

ستا چې لیمو کې نظر غــلی ښکاري
ما ته زما د مینې ځـــلی ښـــکاري

قدم قدم یې ښکلو مــــه خــا وري
پر دغې لار مې جانان تللی ښکـا ري

زه د ساده حسن ساده مئــــین یـــم
ساده چې وګوري لا ښکلی ښکاري

یوه شیبه چې په کې نه وي جــانــان
خاورې ایرې مې د زړه کلی ښکاري

چې کومې لارې د جانان لارې دي
عابد پر هغې لارې پلی ښکـاري

# غزل

ستا انتظار خـــونـــد کوي
تنده خمار خـــوند کـــــوي

مینه کې رقـــیـــب منــــم
ګل سره خار خـــونــد کوي

تل په اضطراب کـــــې وي
زړه ناکرار خـــونـــد کوي

وي چې منصـــوري جذبې
ژوند خو په دار خوند کوي

ستا له التــفـــــات نه زار
ګوره نګار خـــونــد کوي

تا وي ژوند به وبـــایـــلې
ما وي قیمار خوند کــوي

# غزل

پر تخیل چې مې انځور نه شي
ها دې زما د سترګو تور نه شي

چې تقدس په لیمو پور نه شي
مئینه مینه خو په زور نه شي

چې مې مزل ستا تر منزله رسي
زما قدم دې په بل لور نه شي

د زړه پروران کابل مې څه له راځې
په کنډوالو کې آرام نور نه شي

چیرته چې زړونو کې الفت او سیرې
هلته کې ژوند په شر و شور نه شي

عابده څه چې ترینه کډه وکړو
په دې وطن کې کلی کور نه شي

# غزل

ستا التفات مې کړي نظر په ځمــــکه
بانه مې لګي د ځيګر پـــــه ځمـكه

چې مې سبا آرمان په دار ځـــــړوي
هرګز دې رانه شي سحر پـــه ځمـكه

اوښکو ثمر به ترينه ځـــه واخـــلمه
تاسې خو کړی د غـــم کــر په ځمکه

روح به مې خاورې سره میـــــنه لــري
چې راته خوب راځي اکثـــر په ځمکه

*تر هندوستانه يې شغلې خورې دي
دا سې روښان و لکه لـــمر په ځمکه

هغه چې تل يـــې تخـــيل سروش و
اوس اوس اوده شو د خيبر په ځمکه

* حمزه بابا يادو

# غزل

جانان مې داسې په ځیګر وي غـــلی
لکه لیمو کې چې نـــــظر وي غـــلی

ستا د راتلو په انتـــــظار انتـــــظار
داسې ولاړ یم لکه غـــــر وي غـــلی

خود به منګی دا ستا پـــه سر ماتوي
چې لیونی دې پـــه ګـورد وي غـلی

ستا د وصال روژه په خوله پاتې شوم
د یتیـــمانـــوخـــو اختـــر وي غلی

زما په غم داسې جـــانـــان وي غلی
لکه د بر په غم چې لــــــر وي غـلی

# غزل

ته خو به لاړ شې ستا تصویر مې له نظر نه ځي
جانانه ستا یاد مې د څړیکو له پرهره نه ځي

ما مې د زړه په شش محل د ښکلي نوم لیکلی
په هر ساه کې ځي راځي خو له ځیګره نه ځي

د ګل په غیږه کې او سیږي خو آرام نه لري
د پرخې مینه ازلي ده چې له لمره نه ځي

موږه د خپل آرمان په څلي بانديٟ د بر وژړل
خو دا ناسازې لا د وخت له ستمګره نه ځي

اوس نه بنګړي ماتیږي، نه د پیغلو جونو منګي
اوس هغه شور زموږ د کلي له ګودره نه ځي

# غزل

ستا له نظره چې نــــظر اخـــلم
لکه سپوږمۍ رڼا له لـــمر اخلم

د دیدن خوند په مازیــګر اخــلم
د هجر داغ دې په ځیـــګر اخـلم

مست لیونی دې په کوڅه درغلم
ستا د درکانې به پـه ســـر اخلم

لکه فرهاد ستا په شـیرینه مینه
په اجاره دې آشـــنا غـــر اخلم

د سباوون د سپـــیده دم سر سم
د دوران غم په هـــر سحر اخلم

د غزل توري دې د مخ خـــالونه
جانانه زه ترینه اثـــــر اخـــلم

# غزل

جانانه ستا له مخه نـــور وريږي
که تجلی د کـــوه طـور وريـــږي

د زړه پر للمه مې د وصل بـــاران
څه په مستی، څه په سرور وريږي

د تاک په ونه يې ستا نوم ليکلی
چې د ليمو نه دې انګور وريـــږي

دار به د خپلې غاړې هار جوړوم
پر ما اسرار لکه منصور وريږي

# غزل

د لمر ډولۍ کې د رڼا ناوې په وینو سره ده
د بې وسۍ نه تورې لړې د ماښام ښکلوم

د ژوند په هر پړاو مې څو ځلې تندی مات شوی
د خپل آرمان د قتل جرم له ناکام ښکلوم

زما د ښنګ ملګري نور زما وجود نه مني
لکه سقراط په افتخار د زهرو جام ښکلوم

زما په برخه آزادي لویه ګناه ده منم
لکه د زرکې د ښکاري خور شوی دام ښکلوم

د پښتونخوا دغرو سرونه مې په وینو سره دي
زه هم قاتل یم او مقتول یمه الزام ښکلوم

# غزل

غزل غزل شه چې دې ولیکم غــــزل جـــانــــان
د ښکلا غوټې دې راسپــــــړم ول پـــــه ول جانان

لکه په وریځو کې سپوږمــۍ چې پټپټانی کوي
داسې له مانه پـــــټوي مـــــخ پـــه وربل جانان

زه به د مینې دې معصوم آرمـان تـــه څه ووایم
چې رانه غواړي په یوه لـحظه څـو ځـــل جانان

زه د خزان او د بهار څـه منتبار خـــونـــه یـــم
ما مې په زړه داسې کــرلی لکه ګـل جـــانـــان

د ښکلیو خوی د غلچکو دی پام کوئ ملګرو
داسې یې زړه له عابد وړی لکه غل جــــانان

# غزل

د زړه هینداره مې هغه ماتوي
د ځان تصویر څه په مزه ماتوي

داسې سپرلي سره یو ځای مه راځه
چې مې د بر عمر توبه ماتوي

د دیدن تندې دومره واخیستمه
چې مې په شین سهار روژه ماتوي

د ښکلیو یاد د غلچکیو په څیر
په سپینه ورځ د زړه جندره ماتوي

کاروان د ژوند په سترو سترووو لارو
په کوم حسین پړاو دمه ماتوي؟

مستان یې څښي د مستۍ زور ښیي
د شیخ په سر تشه کوزه ماتوي

# غزل

چې مې جانان د زړه له تــــلــه وتـــی
بس تغزل مې له غـــــزلــــــه وتـــی

د ژوند منزل ته بلا لار پــــــرتـــه ده
د روح کاروان مې لـــــه مــــزله وتی

په کومه لاره بـــــه دې لاره څـــــارم؟
اوس چې قدم مې ستــــا له پله وتی

د ګل رخسار د رنـــــګيـــنيو پسې
د زړه بـــلـــبل مـــــې له ګوګله وتی

ستوری د بخت يې پر آسمان ځليږي
چې روغ تندی ستـــا له درشله وتی

# غزل

ډېرې ارزوګانې مې په خوږ زړه کې نيمګړې شوې
ځوانې حوصلې مې د اميد په لار کې ستړې شوې

تا چې سوداګر د مرګ په پوله د ژوند کينول
پوه شو مه باداره چې اوبه دې راته خړې شوې

نشته د پاکۍ يوه ذره ستا په ناپاک وجود
ستا فليتې چارې اهريمنه پورورې شوې

موږ د سبا وون زيري ته ټول وجود غوږونه وو
غيږ کې د سحر مو په نصيب د ماښام لړې شوې

ستا د محلونو نه کوم تپ موږ ته راغلی دی
ستا له لاسه ورانې چې د خوار ولس جونګړې شوې

# غزل

یوه سلګۍ مې له اجل نه ستنه کـــــړې پـــه زور
سترګې مې برندې پاتې شـــــوې د جانان په تمه

د زړه پر للمه مې د ګلو لــــښته وکــــرلـــه
لاس په دعا لکه دهقان یم د بــــاران پـــــه تمه

د زړه کوترې مې اولوت کړی د عرش په لــــورې
شیبه شیبه مې انتظار ده د یـــــزدان پـــه تمه

د نهیلو د جرس کړنګ شي د منــــــزل په طرف
کاروان مې لوټ شي لویه لار کې د ځاروان په تمه

# غزل

زنده ګي مې ښکلي ډېره په هنر خوري
لیوني یې د درکـــــانې زما سر خوري

په رخسار یې لکــــه پــرخه نه ځاییږم
دا رنګینه حادثه مې لـــــکه لمر خوري

دا معصوم آرمان مې خنګه لیونی شو
د وصال په شپه غمونـه د سحر خوري

څه وجود مې د وطن غمـــونـــو وخوړ
څه چې پاتې دی هغه رانه دلبر خوري

# غزل

د حسن زور دې لا په سترګو کـــــې دی
ښکلی انځور دې لا په سترګـــو کې دی

راته کوي چې د مستــــانــــو کیسې
کوم شرابخور دې لا په سترګو کـــې دی

اوس خو زه هومره بې ادبــــه نـــه یـم
ګله ! پیغور دې لا په سترګو کـــې دی

ښنګه به نن د بوسې سوال وکــــړمــه
پرونی پور دې لا په سترګو کـــې دی

د دیدن تنده مې نـــن نــــه ماتوي
ساغر نسکور دې لا په سترګو کې دی

# غزل

سکڼی ماښام يم مازيګر خـــو نه يم
د پيغلو جونو مست ګودر خو نه يم

چې بې له تا مې سترګې نه غړيږي
ستا په ککيو کې نظر خو نـــــه يم

چې د جانان په بام دوره دوره شي
زه د کوترو څه لښکر خو نـــــه يم

بې ارادې مې چې بانه رپـــــيږي
د چا په لاره کې سفر خو نــــه يم

څه له ټوټکې او تاويزونه کوې
زه د پيريانو څه اثر خو نــــه يم

# غزل

لکه د درد مې په پرهر کې ویـــــښ شـــــه
د مینې خوب شه په نظر کې ویـــــښ شـــــه

چې د رڼا د قافلې جـــــــرس شـــــــــي
د سپیده دم په ځیر سحر کې ویـــــښ شه

لکه شپونکی د ژوند شپیلۍ غـــــږوي
داسې په نیمه شپه په غر کې ویـــــښ شه

د ګلرخانو چې نظـــــــــر مـــــاتـــوي
د سپیلنې په ځیر شرر کې ویـــــښ شه

چې د عمل پـــــــه ډګـــــــر وځلیږي
پښتون زلمی شه په سنګر کې ویښ شه

# غزل

زړه مې ستا یاد کې دم په دم ښویږي
پر وچه ځمکه مــــې قـــدم ښویږي

د رقیب نوم مې چې غزل کې راشي
خدايږو له ګوتو مې قلم ښــــویږي

نور به کچکول ورځنې نه جـوړوم
چې مې له لپو نه کرم ښــویـــږي

ښايي د درد به حوصله نه لــــري
چې له زخمونو مې مرهم ښويږي

# غزل

ستا په نظر د نظر تار تـــــړمـــــه
څومره اسان په هوا لار تـــــړمـــه

لړمې د مينې په هوده کې واخـــله
روح مې په بين دې لکه مار تـــړمه

نه دې راځې خو د راتلو پــــه تمه
غوټې په زړه د انــتــــظار تړمه

که مې مراد په زيارتـــو شي پوره
زه به دسمال په هـــــر مينار تړمه

له زخمې اوښکو نه اميل جوړوم
پــه جنتي غـــاړه زنـــار تړمه

عـابـــده ته دې خاطر مه درنوه
که زه پـــــه سـر د ګناه بار تړمه

# غزل

که ستا تصوير په هـــــره لاره گـرځي
پسې زمـــــا د زړه هيـــنداره گـرځي

شپـــه کې د خيال په تړون ستا په لټون
راسره ستوري تـــر سهار گـــــرځـــي

هوده د مينې پرې اثـــــر نـــه کـــوي
د سينې دښتې کې مې ماره گـرځــــي

څوک به مې ور د زړګي وټــکـــــوي؟
لکه زما څوک بيقراره گـــــرځـــي؟

د کوم حسين نوم يې پر ډډ لـــيـکلى
کاروان* چې داسې له چناره گرځي

* زما خوږ ملګرى پيرمحمد ((کاروان))

# غزل

لاس او پښې وهمه سترې یم
مینې کې دې هسې اوبو وړې یم
مه مې غورځوه د غورځیدو نه یم
ومې کره شین به شمه زړې یم
مینه غوارم. زړه غوارم له ښکلیو نه
سوال یمه لا هغسې نیمګړې یم
مه ویریږه، خوله مې نه شته نه دې خورم
زار نه لرم، مار نه یمه، پړې یم
ما باندې احسان چې وخته ونه کړې
زه مې د ژوندون پر اوږو مړې یم
سیوری مې پر سر د پسرلي* ګرځي
شکر د وږمو د بهیر غړې یم

* استاد شاعر محمد صدیق پسرلی او افغان ادبي بهیر

# غزل

وتره مې په اوښکو کړه تووده ځمکه
غم مې وکرلو په ښوره ځمکه

پام کوه قدم مې په زړګي مه ږده
يېلې پښې ځوک کله ږدي په سره ځمکه

پرېږده چې دا وچې شونډې کېږدمه
ستا د رخسارونو په لمده ځمکه

څنګه به يې کړ ښيرازه کېږي نه !
موږه اوبه کړې په خوله ځمکه

تا ته به خوږه نشه د مينې شم
بنګ يمه پخېږيم په ترخه ځمکه

# غزل

توبه مې وا يسته سحر ويـــــــريــږم
چې له مغرب را خيژي لمر ويـــريــږم

په شوخ نظر چې راته ونه ګـــــــورې
له شوخو سترګو نه اکثر ويـــريـــږم

پام چې د نه راتلو يې و نه وايــــــې !
ريباره زه له دې خبر ويــــــريــــــږم

لکه شبنم د ګل په پـــانـــه پـــانـه
زه د تودوخې له اثـــــر ويـــريــږم

د زړه زخمي کابل مې نور مه چيړئ
چيرته ناسور نه شي پرهر ويريـــږم

# غزل

بې له تا نه گرانه ډېره گرانـــــه زنـده گـــي ده
په مينه مينه وگوره جانانه زنـــــده گــــي ده

چې تا مينه راکړې ده، چې ته مې زړه کې اوسې
بس تا پورې تړلې مې آرمانه زنـــده گـــي ده

د زړه پر للمه للمه مې جـــانــــانـه راوريـــږه
په دښته د گلونو له بارانــــــه زنـــده گي ده

حسين پړاو دې مخکې دی قدم پـــه قدم اخله
دمه د يار په کلي شه کاروان زنـــده گـــي ده

لمر غيږه خلاصه کړې ده ذرې په کې نخـــيږي
سحر په مستۍ راغی څه روښانه زنده گـی ده

# غزل

ستا په رخسار د غزل توري نــــاځي
که د آسمان په لمن ستوري نــــاځي

آرمان مې ستا لار ته ګوري نــاځي
د زورور ډول ته کمزوري ناځــــــي

د جانان ياد مې زړه ته داسې راځي
لکه له لمر چې ذرې اوري نــــاځي

دتخيل په تال مې داســې زانګي
لکه زنځير چې د ور ښوري ناځي

د مينې باد په مازيــــــګر راوله
په مازيګر د چنار سيوري ناځي

# غزل

نن د آرمان کلي کې شپه تيروم
ځم د جانان کلي کې شپه تيروم

د زړه پر للمه به مې وتوکيږي
چې د باران کلي کې شپه تيروم

له پرښتو سره مې کړې وعده
د لوی آسمان کلي کې شپه تيروم

د ښار لوګوکې مې ساه تنګه شوله
يمه روان کلي کې شپه تيروم

چې تخيل مې د غزل رنګين شي
ځم د (( کاروان )) کلي کې شپه تيروم

# غزل

له تندې مرمه خو روژه ســـــاتـــــمه
په خم کې لامبمه توبه ســـــاتــــمه

یو لاس کې توره بل کې نیــــسم قلم
زه د خوشحال بابا ورثه ســـــاتــــمه

په زړه کې لولم سیپارې د مــــــینې
په تاخ کې بنده خلاصه ســــــاتــــمه

چیرته په غم باندې هم نه ښـــخیږي
لیمه کې اوښکه پښتنه ســـــاتــــمه

چې مې شعور ته راشي شعر راکوي
په لاشعور کې پرښـــــته ســـاتمه

# غزل

د زړه زخمونه به د زلفو په تار وگنډمه
د نظر څار به ستا د کلي په لار وگنډمه

چې زمانه پرې گواهي زموږ د مینې وایي
د جانان نوم به په تنه د چنار وگنډمه

څومره به ښه شي چې رنگونه د فطرت شي یو ځای
د لمر ذرې به گله ستا په رخسار وگنډمه

کسات به زه د خپل قاتل جانان نه څنگه واخلم؟
بس خو جنډه به د آرمان په مزار وگنډمه

سل کاله کیږي یو ظالم په بې رحمۍ شلولی
ځم چې د لر او بر د غرونو پرهار وگنډمه

# غزل

د نغمو له ښاره ساز و سامان راوړي
تخيل ته مې سندرې جانان راوړي

په ورځ ستا د مخ خالونه زړونه يوسي
د شپې ستوري په لمن کې آسمان راوړي

د ښکلو کو خط و خال وي په کې نغښتی
چې مهار د غزلونو کاروان راوړي

ته د خپل حسن له زوره څه خبر يې؟
چې تور زړي درته ګوري ايمان راوړي

د شهيدو ګلغوټيو جنازې وي
زموږ کلي ته يې غيږ کې باغوان راوړي

# غزل

خیر دی که د ژوند په ژرنده دل شومه
ستا ملالو سترګو ته کجل شـــــومه

چا به راته نثر چـــا به نظـــــم وی
ستا په خوله چې درغـــلم غزل شومه

څو مره ښه نازونه شو یــــو ځای سره
زه چې سپلنی ستا د وربــــل شومه

یا د کلي خلکو وا ورئ مړ مـــې کړئ
مینه کې که خپل جانان ته غل شومه

راشه چې مې بې له تانه روح نه ځي
څو ځلې میلمه که د اجل شـــومه

# غزل

مازیګر نه لري ګودر نـــــــه لري
زموږه کلی خو اخـــــتر نــــه لري

موږه په داسې چم کې ساه اخـــــلو
چې ماښامونه یې سحر نــــه لري

پر ځای د سرې یې بارود خــوړلي
ځمکې مو شاړې شولې کر نه لري

مرګی پر موږه د وير ساندې وايي
د ژوند نغمې پر موږ باور نه لري

جانانه کله خو راپيـــــښـــه وکړه
زما د زړه جونګړه ور نـــــــه لري

# غزل

له سازه مې د روح یوه نغمه وه چې راتــــــله
که ستا د نرګسي ګیسو وږمه چې راتـــــــله

حرم کې مې د زړه چې یو صنم دیره کیــــــده
قدم په قدم مخکې بتکده وه چې راتـــــــله

غبار د تصور له آیینې مې چـــــې صفـــا شو
د باد په خیر زما په لور هـــغـه وه چې راتله

ستا نوم مې لا په ژبه باندې نه و پوره شوی
په شونډو مې د مینې زمزمـــه وه چې راتله

تعبیر یې د سندرو د مغان لـــه پیره غواړم
بېګا راته په خوب کې پرښته وه چې راتله

# غزل

له کوم ځنګله نه ورتــــه لاره راځـــي
هره بلا مو چې تـــــر ښــــاره راځـــي

د زړه پر ځمکه شنه کوي زخـــمـــونــه
ښکلي له څه رنګین بــــــهاره راځــي

لکه چې خپل همزاد مې ومـــونــدلو
چې ورک تصویر ته مې هینداره راځي

د روح سرود مې ورته بین غـــــږوي
د سینې دښتې ته مې ماره راځــــــي

د زړه له شوره لا وتـلی نـــه یــــم
د مینې غږ له دې بـــــازاره راځي

# غزل

زما د ژوند د حسرتونو تن کې ساه مړه کیږي
لږ یې لاس ونیسئ ډیوه رپي رڼا مړه کیږي

هواګیر زړه مې داسې ولې د نظر په ګاټو
لکه ویشتلې مرغۍ څرخي په هوا مړه کیږي

راته یو چا له میکدې نه د توبې وویل
ما ویل نه، نه رنګینه غوندې ګناه مړه کیږي

له خاورو پورته شه ملالې پیغلې چیغه وکړه
میوند خو څه کړې چې لا ټوله پښتونخوا مړه کیږي

خدایه د کومې ګناه غچ دې رانه دلته اخلې؟
لا مې آمین په ژبه ګرځي چې دعا مړه کیږي

# غزل

په تصور کې چې دلبـــــر نیـــــسم
لکه د وریځو غیږ کې لمـــر نیـــسم

دې ماښامونو راته هیڅ را نـــه کړل
د ښکلیو لار په سپین سحر نیـــسم

بیګا مې ټوله شپه منـــتر ویـــلی
څوک په هوده کې د نـــظر نیـسم

چا رانه زړه لکه د غـــل وړی دی
ښکلیو کې ګورم څوک اوتر نیسم

چې صحیفې ورته د میـنې راځي
ځم چیرته دا سې پیغـــمبر نیسم

# غزل

د روح بين غړومه چيرتـــــه مـــاره لـــــټوم
اوبو غوندې د غره لمن کـــــې لاره لـــــټوم

د باد په خير چې ښکته پورته ګرځم لالهانـــده
تصوير له چا نه ورک يمه هينداره لـــــــټوم

چې زړونه تخنوي دا سې نغمې درځنې غواړم
تارونو کې دې هغه تـــــار ستـــــاره لټوم

اول به مې د زړه په دريځو کې راپـــــيدا شي
که نه شو بيا به ستوري په کراره لـــــــټوم

سرونه به ډېر ګرځي خو چې زه پسې ګرځېږم
يو سر چې سلسله يې ځي تر داره لـــــټوم

# غزل

د زړه ګریوان ته دا سې اچوي نظر لا ســـــونـه
لکه د وریځو لمن وخیري د لمر لا ســـــونـه

زه به یې هم د امتیانو صف کې ودریـــــــږم
که مې پر سر تیر کړي د مینې پیغمبر لا سونه

خدایه د نور باران شیــــبه شیــــبه راوورو ه
بدرنګې شپې پر مرۍ اېښي د سـحر لا سونه

د بې وسۍ مې جوړې پته تا ته نـــــه لګیږي
ته چې ښیرو ته غځوې هر مازیـــګر لا سونه

زموږ په کلي کې د وینو د غــج زیـري کیږي
د هر دریم سړي په وینو سره اکـــثر لا سونه

# غزل

لیمو نه چې بهر شولې نظره چیرته ځې؟
له غرونو چې پناه شوې ښکلیه لمره چیرته ځې؟

څه رخه دې مئینو سره کیږي او که څنګه
ماښام ته چې نیږدې شوې مازیګره چیرته ځې؟

د زړه پر للمه دښته مې یو څوک خو رازرغون کړه
ایسار شه پسرلیه مروره چیرته ځې؟

څه ښه وو چې جانان په تصور کې راته ویلې
راځه کینه دمه شه زوروره چیرته ځې؟

د شر د سوداګرو قافلې بازار ته راغلې
لږ وار وکړه د امن پیغمبره چیرته ځې؟

# غزل

ورانې مې کړې لاس کې د تلې کـــرښې
مه جوړوه ماته په تـــــــندې کـــرښې

ښايي چې تصوير به جوړوي د چـــــا
کاږي چې پر ځمکه ليوني کــــرښــې

زړه کې زما لارې تـــــــيروي ګـــلـه !
ستا په مخ چې را کاږي ازغي کرښــې

پاڼه مې د ژوند پـخپله تــــوره کړه
هسې وايم دا دي ازلي کـــــــرښــې

# غزل

صنم مې زړه ته ځي راځي هردم پــــه هــــــره ورځ
پوښتنه خو د ګل کوي شــــــــبنم پــــه هره ورځ

هم هغه څو شېبې مې د ژوندون د خوشحــالۍ وې
جانان چې راته راوړي نوی غم پـــــــه هــره ورځ

دا خلک خو ړانده نه دي چې نه ورتـــه ښکارېږي
که څو مو په سرونو ږدي قدم پــه هــــــره ورځ

دا څوک دي چې زخمونه پر موږ پلوري له قديمه
دا څوک دي رانه يوسي چې مرهم په هـــره ورځ

# غزل

د ښکليو اننګوته مې نظر غځوي لاس
سپوږمۍ د څوارلسمې ته خو لمر غځوي لاس

اوس ګورو به چې چا ده د قسمت لوبه ګټلې
د مينې پيغمبر د چا په سر غځوي لاس؟

د کوم مئين په قتل پسې وتې ده له کوره
په ناز په کرشمه لکه خنجر غځوي لاس

د چا د ګريوان تار تار يې په ګوتو کې نيولی
دا شوخې شيوه ګرې خو اکثر غځوي لاس

که خدای کول جانان به مې لاسونو کې لاس راکړي
خلک وايي چې اختر کې مرور غځوي لاس

# غزل

یو څوک خو مې یو ځل د زړه په لار راواړه
خدایه په مئین زړه مې پرهار راواړوه

ښکلي دې په ځمکه داسې ګرځي لکه ستوري
یو څو خو پرې د مینې په مدار راواړوه

ساقي د میکدې نه دې نن تش لاسونه نه ځم
په لپو لپو سترګو کې خمار راواړوه

هینداره مې د زړه ورپسې ورکه ګرځي
تصویر پرې د کوم ښکلي پرې وار راواړوه

چې غږ د ستار نه خیژي د څنو څو تارونه
جانانه لږ په څانګه د چنار راواړوه

# غزل

تارونه دي د زلفو په رخسار وزنګوه
پر غاړه مې لاسونه لکه هار وزنګوه

يو چا رانه جامونه د نظر وتښتول
بنګي آشنا په بنګو مې خمار وزنګوه

د وړانګو په مهار کې د رڼا کاروانه راشه
حسين سهار د کلي په چنار وزنګوه

جانانه هنګامه د ميني ورځ په ورځ سړيږي
يو سر خو چيرته نن سبا په دار وزنګوه

موسکا دې سندريزه کړه د ذوق پرښتې راشه
دردونه مې نغمه کې د ستار وزنګوه

# غزل

ښکلې شه، له خپل ښايست نه ښکلې شه
نن خو د غماز د سترګو خـــــلې شـــــه

زه ورنه په سترګو کې څه وغـــــــوارم
دی راته غوسه شي وايي، غــــلې شه !

ما د خپل بهير ســـــره ملګرې کـــړه
وخته ! لږ خو ماته پــــــښه نیولې شه

زړکې يې لمنو تـــــــه راغـــــلي دي
بازه د وطن غرونو کــــــې غـــلې شه

# غزل

بیا څوک مئین د هوش له ښاره وځي
د لیونو په ورکه لاره وځي

نغمې د مینې له ستار وځي
که د درد څریکه له پرهاره وځي
دلته د مینې لیوني او سیږي
دلته هر ستوری له مداره وځي
له چا نه ښکلی جانان مخ اړوي؟
که د پارو له هودې ماره وځي
بیا به تصویر د کوم یو ښکلي راوړي
د زړه له کوره مې هینداره وځي

موږه د مینې دنیا هم ولیده
د کار سړي په کې له کاره وځي

# ماشومتوب

راته یاد یږي هغه تیر وختونه
چې په غرمو به ګرځیدم، ګرځیدم
ستا په کوڅه کې به د چاله ویرې
لکه د پاڼې رپیدم، رپیدم
چې ییلې پښې به مې په ځمکه سرې شوې
پنا مې وړه ستا د دیوال سیوري ته
ستا د دیوال خوشبو به داسې مست کړم
لکه د ګلو د شمال سیوري ته
په لوږه تنده باندې نه پوهیدم
نه به غرمه نه مازیګر مې لیدو
ستا په لټون پسې به زه جانانه
ګرځیدم څو پورې چې لمر مې لیدو
خو اوس د داسې وخت پنجو کې ګیر یم
چې مې په ګرانه تن ته ساه راځي
جانانه ستا په غم به څه وژاړم
چې په خپل ځان باندې ژړا راځي

# له سرو سترګو تر سرو سترګو

پرون چې ما په آیینه کې کتل
راته کیسې د ماشومتوب یادیدې

زه به په چیغو چیغو کورته راغلم
مورجانې زه به ستا و لورته راغلم

زما به سترګې وې له خاورډکې
هم به مې سرو له ګردونو نه ډک

تا به نارې کړې چې قربان دې شمه
بیا دې له چا پره شوخې کړې ده

تا به د خپل پوړنې پیڅکې باندې
زما له سترګو خاورې پاکې کړلې

هم به زما له سره ټول گردونه تا وځنډل
راته به ستغې سپـــورې تـــا وکړلې

چې مخ او سر به دې راومیـــــــنځلو
زما به سترګې تکې سرې ښکاریدې

تا به مې سترګې راته تورې کـــړلې

* * *

خو نن چې بیا زما په سترګو کې د چا له غمه
و وینو سیند بهیده

ما آیینې ته کتل
زما تصویر په آیینه کې زنګیده، زنګیده

ما ویل چې اوس به له هینداري نه راوښویږي
تا راته څه په عاجزۍ وویل:

(( زویه لوګې دې شمه ودې ګرځم
نوره د سرو سترګو دا لوبه پریږده ))

# قطعات

سپرلیه هغه به زمـــــوږ د خـــــوارو کلی وي چې
ګلونـــــه ټول په وینو سره وي او بل رنګ نه کوي
دا زمـــــانـــــه لکه چې نور زموږ وجود نه مني
عجیبه نه ده چې احساس مو لا غورځنګ نه کوي

* * *

وخت به موږ ته ځنـــــګه ګلورینه فضا جوړه کړي
غږ د پسرلي وي خو لـــــه ورایـــــه خزان وخاندي
لا د ګلغوټیو ستوني ډک دي له بـــــاروتـــــو نه
تا ته به په کومه خوله سپرلیه ګلان وخـــــانـــــدي

* * *

پام کوه سپرلیه چې زموږ کلي تـــــه رانـــــه شې
ته به د باروتو دې وطن ته څه تحـــــفـــــه راوړې
اوس زموږ د کلي چنارونه ځالې نـــــه لـــــري
ته به د بلبل د غم نوا ته څه نغـــــمـــــه راوړې

* * *

دلته د وخت د نابلدو خلکو خوا کې اوسو
دلته کې موږ ه ساه په بیه اخلو ژوند تیروو
دلته زموږ احساس بندي دی څه ویلی نه شو
ترخې خبرې د هر چا لکه د قند تیروو

* * *

څنګه ژر مې د آرمان قاتل جوړیږي
محتسبه لا مې هغسې ځواني ده
د ښار مشره ستا د امن ښاریه کې
هر څه ګران دي د سرونو ارزاني ده

* * *

پر سپین رخسار چې زلفې لام ولګي
لکه روژه کې چې ماښام ولګي
د تن رګونه مې موسکي شي
غږ چې په غوږ زما د جام ولګي

* * *

لمر چې د غروب په غرغره شي راته وخاندي
جوړه طبیعت کې نظاره شي راته وخاندي
سترګو د جانان که د مغلو خصلت غوره کړ
مینه پښتنه یې تاتره شي راته وخاندي

*   *   *

د انتظار په تـــــريـــخ نـــظر کې مې لا
د اميدونو څه خــــوارږه پــــاتــــې دي
وخته رفتار کـــــې دې کــــرار راوله
ستا له منزله پښتانه پـــــاتـــــې دي

لو

دی

د

لونګو

# د غزل " باز " او د هنر کوترې

خدایزده چې د بني آدم په ارواح کې یې ولې داسې مزې پېیلي دي، چې د موسیقي له شرنګ سره په ګډا راځي او د غزل په اوریدلو او یا لوستلو سره غزونې کوي. خبره د غزل او موسیقۍ په ورووليۍ او خورلنۍ کې نه ده، پوښتنه د دې ده، چې کله خو ځینې غزلونه د خپل هر بیت له خوندور سُر و تال سره ځان یو ګام موسیقي ته نږدې کوي.زه دلته د غزلونو وزني رغښت هم نه یادوم، څه ډؤل وو ایم؟ موخه مې په شعر کې یو ډول پټ " خوند " دی، چې د پښتو غزل په اوسني بهیر کې یې ځان په نویو ریښو ټینګ کړی دی او همدا ځانګړنه (چې زه یې د خپلې ژبې د لنډوالي له امله خوند بولم) ورو ورو په یوه " معیار " بدلیږي، هسې معیار چې وکړای شي شعر له خبرو او کره له ناکره څخه بیل کړای شي.

خدای (ج) شته چې زه د ښاغلي عابد د شعرونو شنه کلي ته د همدغه " خوند " پر کوڅه ورننوتی یم او ډېرځله یې غزلو زما په اروا کې سندریز مزې خوځولي دي او که د ده شعرونو ته ګورم هم نو د کتنې د معیار سترګې به مې همدا خوند وي.

زما پر اند دغسې خوندورهځانګړنه د غزل لیکنې په همدې او سمهالي بهیر کې ښاغلي کاروان ډېره ځلولې او د " بهیر " له لارې د ځو تنو په شمیر کې تر عابد پورې هم رارسیدلې ده، چې د شاعر له ذهن څخه د اوریدونکو یا لوستونکو پر ذهن تر کیناستلو پورې د یوې منظمې پروسې په توګه طرح کیږي او د دې پروسې د علمي کولو ډېرې چارې د شاعر په کار پورې اړوندې دي، چې له نیکه مرغه د عابد صاحب داسې کار د غزل لیکنې په برخه کې بریالی دی. لومړی خو ښایي په ره بیت کې د نوې سکالو " موضوع " هستونې لپاره هڅه وي او دا هڅه شاعر هنري نوښت ته نږدې کوي. په دوهم ګام کې د سکالو

د اراېې لپاره د کلماتو د ټاکلو چاره ده. شاعر غواړي چې هره شاعرانه کلمه داسې وټاکي، چې د یوه ځانګړي هنري موقعیت استازیتوب وکړای شي. د شاعرانه ژبې په وړاندې د شاعر مسوولیت له همدغه ځای څخه پیل کیږي، دریمه چاره له قافیې او ردیف سره د ټول بیت ښکلی پیوند دی. دا پیوند هم هنري ظرافت ته اړتیا لري. له دې وروسته د فني تلازماتو رغونه پیلیږي، چې د شعر قافیوینوښت، آهنګ او د ټاکلي وزم په پام کې نیول دي. د ښاغلي عابد دا بیلګې په مرسته راغواړو:

څنګه چې ښکلي له وعدې نه وځي
داسې مې زړه له ارادې نه وځي
لمر د زرینو وړانګو لاس غځوي
د رڼا ناوې له تیارې نه وځي
ورسره ستا د نامه توري ځغلي
هر اسویلی مې چې له خولې نه وځي
د کوم هوښیار ښکلي په لټه پسې
یو لیونی له میکدې نه وځي
ښکاري جانانه په ایمان یې وایه
باز به دې کله له پنجې نه وځي

عابد هڅه کو، چې ټول شعري کلمات یې داسې یو انځور رامنځ ته کړي، چې وکړای شي د شاعر د نظر وړ نوښت پر لوستونکو ومني.
زموږ دا شاعر ډېر ځله خپل برسیرن او ښکاره عواطف اراییه کوي، چې له ټولو سره شریک دي. د همداسې شریکو عواطفو موندل او بیا ښکلې اوډنه پر هر چا د شعر د منلو په چاره کې مرسته کوي. د

ښکلا په وړاندې داسې ساده، خو ښکلې او نوې عکس العمل ډېرو احساس کړی، خو په لړو شعرونو کې راغلی دی.

چا پسې ورک زما نظر ګرځي
ښکلي چې ګورم په ما سر ګرځي
په شاعرۍ کې "مهال" د عابد همزولی دی. زه د خپلې دغې ادعا د زبات لپاره لاسوندی لرم او هغه د شاعر هنري صداقت دی. شاعر چې د خپل ژوند مهال تنده پوره لمس کړي، ويې زغمي او په وجود کې يې په احساس بدله شي، بیا نو دغه احساس په خورا طبيعي توګه د هنر قلمرو ته راشي او په شعر بدل شي. هغه هم داسې چې دا احساس په پوره صداقت له ټولنې سره شريک شي ، شاعرانه صميميت هم له همدې صداقت څخه سرچينه اخلي. هر کله چې شاعر له خپل مهال سره همزولی شي او خوږه ژبه ولري، نو هنري زيږونې به يې خورا صميمي وي. ګران عابد په خپلو غزلو کې همداسې يو صميمي شاعر دی.
د عابد غزلې مو ډېرې يادې کړې ځکه د هغه په کتاب کې غزلې ډېرې او نور شعري فورمونه لږ دي. څو آزاد شعرونه هم شته، چې کړای شي په دغه جوله کې شاعر د بريالیتوب نښې راڅرګندې کړي "
وروستۍ ټپه" يو ښکلی تصويري شعر دی، شاعر د خپلې هنري موخې په تمثيل کې بريالی دی او په ډېره ځيرنه هېڅ هر شعري انځور بشپړ ارايه کوي. ژبه يې هم خوږه ده د "هائيکو" ګانو په هکله څه نه واسم ويلای، ځکه چې ډېر ورسره بلد نه يم، خو څلورومه هائيکو:
اوس چې اوبه له ورخه تيرې شولې....
د يوې ښکلې ګناه ظريف او سمبوليک اعتراف انځوروي.
زموږ دا شاعر ډېره موده د "افغان ادبي بهير" د شاعرانه منارو بلال وي، چې د ښکلا او هنر د مذهب نورو مومنو "شاعرانو" ته د مينې د نمانځنو بلنه ورکوي. کله خو دغه بلنې خپله په شعر بدلې شي او له

شارع څخه په شعر د شعر د لوستلو هیله شوې ده، ځنې داسې شاعرانه بلنې په دغه ټولګه کې راغلي دي، چې په زړه پورې جوړښت لري.
د عابد په غزلو کې یوه بله ځانګړنه، چې زما تر سترګو شوه، دا وه چې دی د ګڼ شمیر شعرونو په مقاطعو کې له خپل نوم "باز" سره کوتره، زرکه، وزر او دوی پورې اړوند شاعرانه ترکیبونه کاروي، مګر دغه تکرار ته ځکه حسن تکرار ویلای شو، چې هره مقطع بیل خوند او بیل رنګ لري. د دغو کلماتو هره هنري پیښه ډېره ښکلې راغلې ده او لوستونکي ته د ډېر تکرار احساس نه پیدا کوي دا حو بیلګې کتلای شو:

نن "باز" ته د زرکو میرې وویل
سرې سترګې به تورې په کجل کړمه

یا

سپینې کوترې درنه تنګې شولې
"بازه" یو ورځ به دې وزر ماتوم

او یا هم دا

بیله چې د زاڼو له کتاره شي
"باز" ته ښایستو کې شان کوتره شي

یا

زرکې وزرماتې دي په غرونو کې دمه کوي
"باز" یې په هوا نیولې لار لیوني

موږ وينو چې شاعر د هرې کلمې لپاره په بيلا بيلو هنري موقعيتونو کې ځای ټاکي. له ځينو ټاکليو اشياوو سره شاعر ذهنی اړيکي له همدا سې بيلګو څخه ښکاري. خو په دې شرط چې هنري وي او ښاغي عابد دغه شرط بيخي پوره کړی دی.
د پښتو شعر په اوسمهالي بهيرکې ښاغلی باز محمد عابد د غزليزې شاعرۍ ځوان استازی دی، ځکه نوښت، هنري صميميت او خوږه ژبه د هغه په غزلو کې دا سې يو ښايسته ترکيب جوړوي، چې د لوستونکي په اروا کې هنر ته تږي مزي په سندرو راولي. زه خو وايم خدای خو دې زموږ د غزل دغه د سرو سترګو لوړ تخيله باز همدا سې د هنر پر ښايستو کوترو مين لري.
دا تاسو او دا هم د شعر د دوهيو د مستانه قلندر خماري سندرې.

عبدالغفور ليوال

د سلواغې ۱۶ مه ۱۳۷۸

پيښور

# غزل

ځنګه چې ښکلي له وعدې نه وځــــي
داسې مې زړه له ارادې نـــــه وځي

لمر د زرینو وړانـــــګو لاس غځوي
د رڼا ناوې له تـــــیارې نـــــه وځي

ورسره ستا د نامه تـــــوري ځغلي
هر اسویلی مې چې له خولې نه وځي

د کوم هوښیار ښــــکلي په لټه پسې
یو لـــــیونــــی له میکدې نه وځي

ښکاري جانانه په ایمان یې وایــــه
"باز" به دې کله له پنجې نه وځـــي

پېښور، صدر ۱/۱/۱۹۹۷

# غزل

څنګه چې جانان په نظر ښکل کـــړمه
داسې يې غمونو ځان ته خپل کـــړمه

څو که لا کچه غوټۍ د میـــــــنې ده
زه به يې د اوښکو پـه نـــم ګل کړمه

بیا مې په یو ښکـــــــلي نظر پریوتو
بیا ځکه خبرې پـــــه غـــــزل کړمه

زه او جانان لاس تـــر غـــارې ووتو
اور به د رقیب پـــــه خـــونه بل کړمه

نن "باز" تـــــه د زړکو میرې وویل
سرې سترګې به تورې په کجل کړمه

۵/۱/۱۹۹۷

# غزل

چې د جانان د نظر شپول نـــــه شي
د زړه پرهر به مې راتـــول نــه شي

چېرته یو نیم وي په کې سر ووهـــي
د بیابان هر بوټی غاټول نـــــه شي

که د چا ښکلي له لاسونو پریوځي
مات به زما د زړه کنډول نه شـــي

تا سره مینه مې څه حد نه لــــري
ما سره ستا کرکه په تول نه شـــي

د غم ښادۍ پته به څه ولــــګي؟
چې نغاره نه شي او ډول نه شي

۲۲/٤/۱۹۹۷

# غزل

د ژوند نغمه مې د ستار د ترنگ خبرې کــــوي
چې د ښکلوکو پر سینه لونگ خبرې کـــــوي

اوس به د چا د خیال تصویر په کې ذرې ذرې شي
د زړه هیندارې ته مې څوک د جنـگ خبرې کوي

یارانو تاسې به دُعا کوئ چې ســـر ونه وخوري
د شمایلې د راوړو ملنگ خـــــــبرې کوي

د ژوند تیارو کې و تنگ شوی د رڼا لـــیونی
د ډیوې څنگ ته یو شهید پتنگ خبرې کــوي

زړه مې نری شي غریو مې و نیسي له حاله وځم
چیرته مین چې د بنگړو د شرنگ خبرې کـوي

# غزل

د مينو سترګو تاب زمـــــا خـــوښيږي
دا د بزم انقلاب زمـــــا خـــوښـــيږي

چې تنها کې مې د زړه نغـــــمې نغمې کړي
په زنګون باندې رباب زمـــــا خوښيږي

ستا يوه يوه خبره يو حـــــديـــــث شي
ستا د سرو شونډو کتـــاب زما خوښيږي

چې د مينې د يادونو هـــــديــــره وي
دا سې زړه خانه خراب زما خوښــــيږي

ژونده تاکې د جانان له ميـــــــنې پرته
په ايمان کې دې بل باب زما خوښيږي

۱۹/۵/۱۹۹۷

# غزل

د سپوږمۍ چمبه را واخله، ورته ستوري په ګـدا کړه
مرورې دې سندرې، لرې يې توري را پـــخـــــلا کړه

په نظر راباندې وڅښه، د ښکـــــلا د مۍ جامونه
اوږده غاړه صراحي کړه، امـــوخته مې په صهبا کړه

د زړګي په للمه دښـــــته، د ارمـــــان زړي کرمه
د باران په شان وريږه، چيرته شـــــنه مـــې تمنا کړه

تخيل کې جوړومه، ستا د ميـــنې د ښکـــــلا بُت
بُتکده د خيال حرم کړه، لرې خو ما د ځـــان په خوا کړه

څنګه غلې ناست يې "بازه" وزرونـــه دې خواره کړه
د کوترو سيل تيريږي، څه خو شور څه خو غوغا کړه

۱۹/۵/۱۹۹۷

# غزل

له زړه نه راشي په ليمو کې انتظار وباسي
يارانو ما د ښکلو مينه له روزګار وباسي

داسې ښکاريږي چې ساقي هم کينه ور غوندې شو
ډله رندان چې ميکدې نه وار په وار وباسي

دا زمانه داسې په چل او په هنر بدليږي
لکه پوستکی چې له خپله تنه مار وباسي

بيا يو منصور پيدا کړه، بيا د چا د مينې په نوم
چې يو ناره د اناالحق په سر د دار وباسي

د زمانې د حوادثو څه پروا نه لري
"باز" په سيلۍ کې هم کوترو پسې لار وباسي

٦/٧/١٩٩٧

# غزل

نن دليمو د خونې ور مـــاتـــوم
په چا به تنده د نظر مـــاتـــوم

د سترګو جنګ ته مې بلا زړه کيږي
ستا د بڼو به دا لښکر مـــاتـــوم

راځه جانانه را ترغاړې ووځـــه
يو څو تڼاکې د ځيګر مـــاتـــوم

شيرينه مينه مې په زړه وريـــږي
په فرهادي تيشه به سر مـــاتوم

سپينې کوترې درنه تنګې شولې
"بازه" يو ورځ به دې وزر ماتـــوم

۲۹/۱۰/۱۹۹۷

# غزل

ډېر ستا د راتلو پــــه انتـــــظار لـــــيوني
راشه که يې ګورې د ديـــــــدار لـــــيوني

ستا د پاکې مينې اناالـــحق وايي په چيغو
جګ سرونه وګوره پـــــــه دار لـــــيوني

څوک دې خانقاه کې بلوي ډيـــوې د زړونو
څوک ناست ميکده کې وي خُــــمار ليوني

هر طرف اوتر اوتر د ښکـــــلو نظارې کوي
ګډ چې شي د صدر په بازار لـــــــيونـــــي

زړکې وزر ماتي دي په غرونو کې دمه کوي
"باز" يې په هوا نيولې لار لـــــــيونـــــي

پېښور،صدر۲۶/۱۱/۱۹۹۷

# غزل

مهاجر زړه مې خوشحالي یوه زره نه لري
په ځمکه سیوری په آسمان کې ستاره نه لري

په مرګ یې نیسي، غاړه تبې ته مجبوره کیږدي
د زمانې له ستمګرو نه چاره نه لري

موږه د داسې بد نصیبه قبیلې وګړي
زموږه مړي ګډ ښخیږي هدیره نه لري

اوس د آذان ازانګې ټول کلي ته نه رسیږي
زموږ جومات یې شهید کړی مناره نه لري

راځه چې پاتې ژنده ګي په محبت تیره کړو
نفرت ښه نه دی آشنا مینه خساره نه لري

۵/۱۲/۱۹۹۷

# غزل

ستا د خولې خبره مرغـــلره شــــي
زړه ته چې راکوزه شي ســـندره شـي

زه ورته وسله د خودۍ کیـــږدمـــه
مینه په ما څـــومـــره زوروره شي

ناز لري، نـــیاز لري، انــــداز لري
خپل مین چې وګـــوري اوتره شي

څومره چې په کـــم نظر کتل کوي
هومره به یې حـسن لـــه نظره شي

بیله چې د زانـــو له کــــتاره شي
"باز" ته ښایستوکي شان کوتره شي

۲٦/۱۱/۱۹۹۷

# غزل

څه په نشیب څه په فـــــــراز روان دی
زړه مې د کوم ښکلي پــــه ناز روان دی

په کوم پړاو بــــــه چــاته ځان وسپړي
راسره ســــم د میـــــنې راز روان دی

روح مې سندرې په اوږو بـــــار کړي
د سُر او لې ورپسې ســــــاز روان دی

چې کوم شاعر به ترې الــهام واخلي
ښکلې په څه ښکلي انـداز روان دی

چیرته به خپل مرام ته ورســـــیږي
ځي په کوترې پسې "باز" روان دی

۱۳/۳/۱۹۹۷

# غزل

د غم ماښام په ما زديــــــــګر راغی
خدايه څه تندر په ګـــــــــودر راغی

د بورو شور په هديره کــــــــې و جوړ
چاته راته ويلي چې اخـــــــــتر راغی

زما د قتل اراده يــــــــې کــــــړې
جانان د ليچو په خــــــنجـــــر راغی

د زړه پر ځمکه کرونده پــــــــخوي
ښکلی په شان لکه د لـــــــمر راغی

د خيال وزر مې ستا په مينه خور شو
سروش د شعر مــــــــې پـــه هنر راغی

# غزل

چې شبنم بوسه له مخه د گل واخلي
تصور مې رنگيني د غزل واخلي

د ديدن تنده کې هومره تکنی کړي
چې له ډېرې بې صبرۍ نه مې جل واخلي

په اسانه به يې خلاص نه کړې جانانه
که د مينې تار مو يو ځلې ول واخلي

ښاماران يې چې په څانگو مستي وکړي
له ترخو نه خوارېږه څنگه صندل واخلي؟

بې له شکه هغه شپه به وي د قدر
چې سپوږمۍ ستاد رخسار ځنې ځل واخلي

۲/۳/۱۹۹۷

# غزل

ښکلو پسې زړه مې سحر وتـــــى دى
هم مې له ليمو نـــــه نظـــــر وتى دى

واړه ارمانونه به مـــــې ووژنـــــي
نن دې د ښهو چې لښکر وتـــــى دى

ستا د ماشوم غم تپوس مې زړه کوو
ما وى چيرته نه ځي بهر وتـــــى دى

هغه د نګ چنار کلي کې نه شته دى
غشى تر سينې د نښـــــتر وتى دى

"بازه" پسې والوزه وار مـــــه کوه
ګورې نه صحرا ته کوتر وتـــى دى
٤/٤/١٩٩٨

# غزل

د سرود کډه يې ليږدي، د مستيو وچکـــــالـــي ده
د شاعر د خيال لمنه، له سندرو نه خـــــالـــــي ده

بيا يې غيږه کې رانه وړل، د رامبـــيل چامبيل ګلونه
سږ کال هم په موږه خوارو ، تنده ګونځې د پسرلي ده

د نارنج د ګل ميله ده، د بـــــارودو پـــه وطن کې
له شهيدو ګلغوټيو غيږه ډکـــــه د مـــــالــي ده

د مه ځای يې زړه کې نه شته، د کاروان د لارويــــــو
په خنجر د ليچو راغله، نن حسينه جــــلالـــي ده

٦/٤/١٩٩٨

# غزل

ډک له مينې زړه لرم
شکر دی هر څه لرم

بد و ته يې بد وايم
ښه يې په ليمه لرم
زه د جانان غم سره
تل د زړه خواله لرم
خټه مې له عشقه ده
اور لرم، اوبه لرم
ويښ وخت څه په منډه ځي
زه چې بخت اوده لرم
مه ! وزر مې مه تړه
"باز" يم الوواته لرم

۱۳/٤/۱۹۹۸

# غزل

مينه مې داسې په دايــــره کـــې واخلي
لکه بين مار چې مار هــــوده کـې واخلي

د ماز ديګر وعدې تــــه نــــه رسيږي
د ديدن تنده مې غـــرمــه کـــې واخلي
ښکلې ګناه ته مې رابـــولـي ســاقــي
رانه توبه په ميـــــکده کــــې واخلي
د عزرائــــل به دا احـــسان ومـــنم
که رانه ساه ستا په کوڅه کې واخـــلي
زما په زړه داســــې قبــضه واچــوه
لکه ښامار چې لال ولجــــه کې واخلي

سترګې يې سرې شي په چا خيال نه کوي
"باز" چې کوتره په پنجه کــــې واخلي

١/٥/١٩٩٨

# غزل

چا پسې ورک زما نظر ګـــــرځـــــي
ښکلي چې ګورم په ما ســــر ګـــرځي

غم مې د زړه کلي تــــــه لاره کــــړې
په سپین سترګې په کې اکثر ګـــرځي

یارانو ځمه لاس نیوی تـــــرې کـــوم
چیرته د میـــــــنې پیغمـــــبر ګرځي

د مخ رڼا یې دنـــــــیا ونـــــــیولــــه
یو څوک په خیر لکه د لمــــر ګـــرځي

خدا یزده چې زړکې کومې خواته تللي
ورپسې "باز" په سم او غــــــر ګرځي

# غزل

لږ یې راویښ کړه دې ویده ارمان ته لاس واچوه
راشه دا ځل زما د زړه ګـــــریوان ته لاس واچوه

راته د سپینو سپــــــینو ستورو امیلونه راوړه
د کائیناتو دې خـــــواره جهان ته لاس واچوه

ترینه ولجه کړه د سـندرو غرونه غرونه اوښان
د غزلونو اوښبانه کــــــاروان ته لاس واچوه

چې د وختونود ناســـازو نه څه غېچ خو واخلو
جانانه نن خو دې تراخــه دوران ته لاس واچوه

چې د رقیب له زړه نه سوی سوی دود وخیژي
"عابده" دا ځل دې خواږه جانان ته لاس واچوه
۱۷/٦/۱۹۹۸

# غزل

يو نظر خو رندانه راواړوه
لږه تيره زمانه راواړوه

درنگ ساعت له به ډيوه په مړه کيدو شي
هله ژر شه پروانه راواړوه

د تندي له اييني نه گوري زلفې
په رخسار دانه وانه راواړوه

د ښکلا بته په زړه کې مې ديره شه
دا حرم په بتخانه راواړوه

بازه اوس دې غزلونو کې خوند نه شته
بس دی نوره افسانه راواړه

٢٠/٦/١٩٩٨

# غزل

یو ساز و ، یو سرور و ، یو نغمه وه تیـــــــریـــــــده
په سیمه مې د روح د چا وږمه وه تــــــــیریـــــــده

هیڅ حد یې د ښکلا تا کلی نـــــه شمــــــه یـاـ رانو
د سیند په څیر روانه وه څـــــــپه وه تیـــــریـــده

یو څوک مې تصور کې جــــــــوړولـــــــه ورانوله
په ما د لیونتوب یـــــــــوه دوره وه تـــــــیریـــده

ها ستوري به یې یاد وي چې تک شنه وو له خندا نه
ها څنګه د مستـــــــیو ډکـــــــه شـــــــپه وه تیریده

یو شرنګ مې د پاولیو په غـــــوږونو کې نښتېږي
په خیال کې مې تر څنګه چې هغــــــه وه تــیریده

۲۸/٦/۱۹۹۸

# غزل

د مینې لاروی یمه صنم ته مـــــې وربـــولـــي
دا داسې بُتکده ده چې حرم ته مې وربـــولـــي

دا زړه راسره رخه لري ځکه خـــو یـــارانو
چې چیرته مینه نه وي هغې چم ته مې وربـــولي
د چا د تورو سترګو د جادو بـــه ځـــه اثر وي
چې هر سهار د میا او ملا دم ته مـــــې وربولي
چې ستا د خولې خبره مې په شونډو زمزمه شي
یو ښکلی ترنم شي زیر او بم ته مې وربـــولي
نظر مې د رخسار په لارو تورو زلفو ونـــیو
دا څنګه رڼې لارې دي تورتم ته مې وربـــولي

لیمو کې یې د ژوند خُمار، خُمار راته کـــرلی
چرسي بنګي سړی یمه چیلم ته مې وربـــولي

۲۶/۶/۱۹۹۸

# غزل

له زړه نه درته وايمه د ځان په خير مې خـــــوښ يې
جانانه په والله چې د ايمان په خير مــــې خوښ يې

د مخ فضا دې ټوله سندريزه غـــــونـــدې ښکاري
د سپينو رڼو ستورو د آسمان په خير مې خوښ يې

د زړه تاخ کې دې ساتم تقدس دې په ليــــــمو وړم
باور وکړه جانانه د قرآن په خير مې خـــــــوښ يې

"سالکه" آشنا څنګه رانه ليرې، ليرې ګـــرځې؟*
"نثار" زما ياره د "کاروان" په خير مې خـوښ يې

د ښکليو په خير ښکلی يې غزله د "پـــــسرلي"*
د مينې د کيسې او د رومان په خير مې خوښ يې

*سالک، نثار او کاروان زما شاعران ياران
*استاد پسرلی زموږ مشر او استاد شاعر

# غزل

ستا د ښکلا ځينې قلنګ غــــواړي
يوه خولګۍ درنه ملنګ غــــواړي

ستا د کوڅې له رقيبانــــــو امـــان
په نه خبره باندې جنګ غــــواړي

څو مره ساده ده کليوالـــــه ميـــنه
د هار پر ځای رانه لونـــګ غواړي

د زړه مې سوبه په دوه څـــيزه کيږي
يو رانه تا غواړي بل بـــنګ غواړي

د ښکار پر ځای ورسره مـــينه وکړه
"بازه" کوترې درنه څنګ غواړي

# غزل

د زړه خُم مې لبريزه دی ميخواره رانـــــه ورکه
تصوير مې پسې ګرځي خو هينداره رانه ورکه

هر څو که لاروی يــــــمه د شپـــــــړو جهتونو
چې تا ته غځـــــيدلې هغه لاره رانـــــه ورکه

چې ژوند ټپه ټپه کړي چې ميوند ټپه ټپه کړي
يو داسې پښتنه د جنګ سالاره رانـــــه ورکه

د بين په ترنم يې د روح کلي ته رابـــــــولـــــم
هنر چې په کې نغښتی هغه ماره رانـــــه ورکه

موده وشوه سندرې راته نه راوړي يـــــــارانو
څه ټکه راپريوتې سندرماره رانـــــــه ورکه

# غزل

څوک مې په نظر کې راشين شوی دی
درد مې په پرهر کې راشين شوی دی

ډېر به د ارمان ګلونه ونيسي
زړه مې په ګودر کې راشين شوی دی

رام به نه شي کلکې ارادې لري
هر افغان سنګر کې راشين شوی دی

ښښې د "حمزه" د تخيل لري
شعر که په "خيبر" کې راشين شوی دی

بيا به په پنجو کې زرکه ونيسي
ښکار د "باز" وزر کې راشين شوی دی

# غزل

ستا له نظر پــــريـــــوتـم
خدا يږو له غر پــــريـــــوتم

ته په وعده را نــــه غـلې
زيړ مازديگر پريـــوتـــم

زه د سپيلني پــــه خـير
واخ، په شرر پريـــوتـــم

ما وی چې کعبه بــه وي
زه دې په ور پريـــــوتم

ښه مې زړه پرې يخ کړلو
"باز" په کوتر پـــريوتم

# غزل

له زړه مې ارمانونه ستا په لاره ځي پــــــه منډه
یو څو لیوني ستوري له مداره ځي پـــــه مـــنډه

پرون مې تلوسه د نن په تمه زیـــــاتـــــیـــــده
خو نن چې راغی ښکلی شو ناګاره ځي پـــه منډه

یو چا په میکده کې وچې شـــونډې شپه رڼه کړه
یو څوک چې بلا نوش و له خپل واره ځي په منډه

هغه د یو دیدار په خاطر سر تلي کې اخـــــلي
چې ژوند یې مینه مینه وي تر داره ځي په مـــنډه

زما د زړه له خُم نه یې یوه څکه ونـــــــــه کـــړه
په ناز په کرشمه رانه میخواره ځي په مـــــنډه

۷/۱۰/۱۹۹۸

# غزل

خو ګیلې، دُعا به د آمین په مـــــزي وتـــړم
زړه به مې د ښکلو د آئین په مـــــزي وتـــړم

نن به مې د سترګو کورکې ورته پرانیستې وي
پریږده چې یو څو په کې حسین په مزي وتـــړم

ټولې فلسفې به ستا د مینې په مخ شاته کـــړم
ښکلی غوندې شک به د یقین په مزي وتـــړم

هار د سپینو لیچو به په غاړه کې دروا چـــوم
وار وکړه چې زه خو لونګین په مزي وتـــــړم

رادې شي کوترې دې د "باز" په سینه وګـرځي
زه به یې وزرونه ښه سنګین په مزي وتـــــړم

۲۲/۱/۱۹۹۹

# غزل

د زنده گۍ غمونه واړه مې له زړه راټول کړم
چې کور ته لاړ شم په سینه باندې واړه راټول کړم

په تصور کې زه ماشوم شم په کوڅو کې گرځم
سکڼې مانښام وي چې خوړلن له تناره راټول کړم
کله نا کله زه په ورانو گودرونو گرځم
کله ښایست له ټول جهانه په لیمه راټول کړم
لړ مې د زړه درزا ته لاس ونیسه سود به مې شي
د ارمان ټپ به ستا د گوتو په چاړه راټول کړم
خدایزده چې څه توپان په سترگو کې جانان راوړی
چې راته وگوري بې واکه مې بانه راټول کړم

ستا د ښایست د اسمانڅکو په لور نیت مې کړی
باز یم وزرونو کې به دوه ستوري رانه راټول کړم

۲/۲/۱۹۹۹

# غزل

څه خو شته چې دا سې خونړۍ اړوي ســــــترګې
جانان چې رانه نن کړۍ کړۍ اړوي ستــــــرګې

راځئ چې د یو بل سترګو کې ټول سره راټــول شو
زموږه له خوارانو چې نړۍ اړوي ســــــترګې

زما د زړه غوښتنه باندې خدا یږو پــــــوهیدلی
دا ښکلی چې له ما هره ګړۍ اړوي ســـــترګــې

د برکلي د شپون رمې هوښیارې راته ښـــکاري
ازغو کې چې ترې پاتې شي وړۍ اړوي سترګې

دُعا به د کوترې سپین وزرې ورســــــــره وي
چې "باز" نه په هوا هره جړۍ اړوي ستـــــرګې

۲۹/۲/۱۹۹۹

# غزل

ټولې بُتکدې وې حــــــــرم را نــغی
زړه ته مې څوک ښکـــــلی صنم رانغی

چاته چې مو لاروکـــــې ګلان شیندل
هغه خو زمونږه پـــــه چـــم رانـــغی

تل د سپینو لیچو په خنجر راځـــــي
ښکلی د موسکا په کرم رانـــــغـــی

ځم چې د ګلونو موسم غـــــلا کړمه
مونږ باندې یو کال چیرته سم رانغی

ته یې چې ښکالو ته غوږ نیولی وې
"بازه" هغه زرکه قــــــــدم رانغی

۱۲/۳/۱۹۹۹

# غزل

هغه چې د مودو خُمار يې سترګو کـــې غړيږي
خپل وار ته يې وار نه کيږي يو جام اخلي او ځي

د چا چې اراده د خپل منزل په لور پـــــخه وي
فراز و نشيب نه ګوري بس ګام اخلي او ځــــي

يو درد د چا دميني مې پرهر ته لاره کـــــــړې
يو ياد يې جانانه هميش سلام اخلي او ځــــي

د کوم يو وږي "باز" نظر په کلي لګـــــيدلی
په شنه سهار کوتره چې له بام اخلي او ځـــي

۵/۶/۱۹۹۹

# غزل

په ليونو کې دې راغلی نـــــه يـــم
جانانه زه دومره ښاغلی نـــــه يـــم

ما د خولګۍ طمعه کې و نه ســــاتې
زه خو لا دومره نازولی نـــــه يـــم

بخښنه غواړم په حاضر محـــــفل کې
د چا په سترګو کې خو خلی نـــــه يم

اوس نه چنار او نه سنځلې شــــته دی
اوس د هغې يادونو کلی نـــــه يم

د يو ورور پښه مې جنګ کې وبايلله
خو له سنګره تښتيدلـــــی نـــه يم

# غزل

څه ښکلی تصور و چې تر څنګه وه راغلې
نغمه وه د لونګو چې ګلرنګه وه راغلې

په تورو تورو سترګو يې قلنګ راځنې واخيست
چې کور ته مې د زړه يو ملنګه وه راغلې

د خپل مين ټپونه يې ګنډل په تار د څڼو
هغه پښتنه پيغله چې له جنګه وه راغلې

سندرې يې له لپو نه شيندلې ليونۍ وه
بېګا راته په خوب کې شوخه شنګه وه راغلې

د ړندن پر ځای د بنګ دانې خوړلې وې کوترې
دا نن چې درته "بازه" ړنګه بنګه وه راغلې

۱۲/۵/۱۹۹۹

# غزل

ته لېـ راتـــــه وګـــــوره
زړه لېـ راتـــــه وګـــوره

ژوند په کـــــې راونغاړه
مړه لـــــې راته وګـــوره

بس درنه یو خوله غواړم
څه؟ لـــــې راتـــه وګوره

ګل په اننـــــګو وړمه
ښه لېـ راته وګـــــوره

۱۲/۵/۱۹۹۹

# غزل

تور کفار لښکر پــه سپــین اسلام راواړوه
لږ دې په رخـسار د زلـفـو لام راواړوه

پام کوه آشنا چې پښه نیولی په کې نـه شـې
مینه خو سرحد نـه لـري ګـام راواړوه

زه به ورته ټوله شاعري خپـله اهـدا کړمه
خدایه د شاعر حسن خـو پـام راواړوه

پریږده چې د ژوند خُمار مې ټول په کې خړوب کړم
تنده مـاتـومـه ساقي جام راواړوه

٦/٦/١٩٩٩

# غزل

د ژوند مسته نغمه چې له ربـــابـــه راوتله
د مینې ولوله مې له شـــبابـــه راوتله

زمزم خو به چا نه وي په مینا کې اړولـــــي؟
بیګا شپه چې وړمه یې له شرابـــــه راوتله

د تندې تلوسه مې وار له واره زیـاتـــیدله
ها ښکلې چې یارانو له سُرابـــــه راوتـــله

پرون چې د مطرب له ترنګه څه مې اوریدلي
هم هغه مسئله نــــن له کــــتابه راوتله

کوم چا به په پنجره کې بندیوانه وي ساتلي
کوتره خو به "بازه" بــــې حــجابه راوتله

۱۴/۶/۱۹۹۹

# غزل

څه د ژوندون سرو تـــــــودو وخــــــورم
څه د چا مینه کې نـــــــــشو وخـــــورم

هسې له وخت نه ګیله څـــــــه لـــــه کوم
خپلو يـــــــارانـــــو پـــــه پردو وخورم

وطنه ستا له غیرېې لـــــیرې، لـــــــیرې
د پردیسیو ورځو شــــــــپو وخـــــورم

هغه خدايي سلام هم نـــــــه راکـــوي
زه يې غمونـــــو انــــــدیښنو وخورم

خپلې خــــــــورینګي ته کوترې ويل
زه د "باز" دوه وو سترګو سرو وخورم

۸/۷/۱۹۹۹

# غزل

اور مې کړه شرر کې مې راونـــــــغاړه
درد يمه پرهر کې مې راونـــــــــغاړه

وا مې خله د سترګو په کونجونو کې
ښکليه ! نظر کـــــې مــې راونغاړه

تورو ماښامونو ته مې پـرې نه ږدې
ګوره سپين سحر کې مـې راونغاړه

نن راته کوترې څه په مـــــينه ويل
"بازه" په وزر کې مې راونـــغاړه

۲۷/۸/۱۹۹۹

# غزل

خبره چې په کلي کې شوره شوه څنگه ځې؟
کیسه زموږ د مینې چې ښکاره شوه څنگه ځې؟

تصویر دې په کې وځړوه، یاد خو به دې ساتې
رڼه مې د زړګي چې آیینه شوه څنگه ځې؟

هن ! واخله لږ سرور خو په لیمو رانه یوسه
ژوندون مې درته ویړه میکده شوه څنگه ځې؟

سهار و، مازدیگر شو اوس ماښام په تیریدو دی
ایسار شه د چا یاده نوره شپه شوه څنگه ځې؟

ښه ډېر به درته جوړ کړم سپینې غاړې ته ځوندې
پخه چې د لونگو کرونده شوه څنگه ځې؟

۱۵/۱۱/۱۹۹۹

# غزل

څوک مې په میو باندې، څوک مې په بنګ نمانځي
څوک مې د تورو سترګو په ښکلي جنګ نـمانځي

بیا د غزل ملکې، ګــــیډۍ ســـندرې راوړې
چې به په دې عنایت، کوم یو ملــــنګ نمانځي

بیا په وطن سپرلی شو، جونې په ســـیل ووتې
سپینه سینه به د چا په تور لونــــګ نـمانځي

ډیوې رڼا دې ورته، د کوه طور ډیـــــوه شي
ژوند په مرموزه ادا درته پتنګ نــمانــځي

د وطن ټول شاه زلمي، به سره بیا راټول شـي
د آزادۍ ناوې به د ډول په ډنګ نمـــانځي

۲۲/۱۱/۱۹۹۹

# غزل

نشه ده د شرابو په رګ، رګ کې مې خوره ده
سندره چې زما د تخيل په تال سپره ده

نظر مې ښکلا وزيږوي کوم لور ته چې ګورم
له کله نه چې ښکلې مې په سترګو کې ديره ده

چې تا په ګلورين نظر يو واري ورکتلي
جانانه د زړه سيمه مې اوس ټوله ګلدره ده

يو څوک راغلل ژوندون يې د مرګي نيزه کې يوړو
دا پورې کلی وګوره چې واړه هديره ده

د روغې څه خبره به يې باز سره وي شوي
کوتره چې په شين سهار د بام په سر ښکاره ده

۲۷/۱۱/۱۹۹۹

# غزل

ښه ډېر په اســـــانـــــه راتـــــه وګوره
لږ خو په ما ګرانــــــه راتــــــه وګـــوره

زه مې نظر ستا په ښکلا ویــــنځــــــمه
ته او خدای جـــانـــــه راته وګوره

یاده به وي تاته پـــــرونـــــــی وعده
نن نه شي پښـــــیمانــــــه راتــــه وګوره

ستا د جرس شرنګ سندرې شنې کاندي
ای او ښــــبه کـــــــاروانه راته وګوره

تا پسې خو خدایږو رســــیده ګران دي
لمر غوندې روانه راتـــــه وګــــــــوره

۱۶/۱/۲۰۰۰

# غزل

داسې مې اوښکو باندې ستا د کوڅې ور وينځلی
لکه باران چې بيګا ټوله شپه وې لمر وينځلی

دا چې ښکلا راته په هر څه کې ځرګونه وهي
سهار وختې مې ستا په ښکلې مخ نظر وينځلی

په لاهوتې سندرو نيت ترم د مينې په نوم
د زړګي خُم مې په شرابو د کوثر وينځلی

څنګه سرور دی د بر کلې د ګودر په غاړه
چا به د بنګو په وږمه وي مازديګر وينځلی

د بوډې ټال يې په وزرونو کې يو شپول جوړوي
"بازه" د سپينې غرې په واوره يې کوتر وينځلی

۲۱/۱/۲۰۰۰

# غزل

څنګه خاموشه زنده ګي ده هنګامه نه شـــــته دی
نن دې د کلي مازديګره هيڅ مزه نـــه شـــته دی

په يو ساعت کې په يو رنګ په بل کې بل رنګه وي
ماته خو خدايږو د دې ښکلو اندازه نه شـــته دی

څنګه ايسار شمه يارانو په دې چم کې څـــه دي
دا وخت به څرنګه تيريږي چې هغه نه شـــته دی

اوس به دې څرنګه ښکلوکيه ســــندره کـــړمه
چې مې په شونډو ستا د مينې زمزمه نه شتـه دی

د جنګ شيبې وې ديوالونه سره غاړې وتـــــل
لارې مو ورکې دي په کلي کې کوڅه نه شته دی

١٧/٢/٢٠٠٠

د اسحاق ننګیال په مړینه

# غر او آس

یو غر راونړیده
هغه دنګ غر
چې آسمانڅکو ته یې لاس غځیده
لکه د طور په څیر ذره ذره شو

****

یو آس له پښو ولویده
هغه سپین آس
چې په یو ګام کې به تر لیرې، لیرې ورسیده

د امان الله ساهو په مړينه

# دا څه ټکه راپريوتې

دا څه ټکه راوپريوتې
چې د سر سرې مو وينې
څنګه ژر يې رانه واخلې
دا څه ټکه راپريوتې
د يو غم فصل مو زړونو کې پوخ نه وي
بل راشين شي
دا څه ټکه راپريوتې
چې د سر سيوری پيدا کړو
عزرائيل يې په وزرونو کې راټول کړي
دا څه ټکه راپريوتې
د "ساهو" ګلونو پاڼې
د "پسرلي" په غيږ کې زمولې

۱۵/۷/۱۹۹۸

# وروستۍ ټپه

زما د زړه دره کې
ستا د یادونو ځلې
د یو شهید آرمان په څیر ولاړ دی
او ستا د خولې وروستۍ ټپه په آزانګو اړوي
تا ته به یاد وي که نه؟
ما درته څه په هنرمندو ګوتو
د سرو او شنو مریو پوښ کې وه رجړومه جوړه
او د هینداري په کونجونو کې مې
د خپل نامه توري یو ، یو وکړل
ما ویل چې ته کله کجل پوري کړې
نو په لیمو کې به دې وغځیږم
او که هینداري کې تصویر ته ګوري
ستا له تصویر نه به راوتوکیږم
داسې به تا سره د مینې په تار ځان وتړم
خو داسې کله وشول

او ما نه کله هیر دي
چې په بې نیازه غرې دې وویلې
راشه آیینه رانجه دې واخله
نه دې یاري کړم نه دې نښې ګرځومه

# څو درې مسریزې

راځه چې نن خو پټپټانی وکړو
چیرته یو ښکلی ماشومتوب پیدا کړو
چې څه خو مینې ته بهانه جوړه شي
***
ځان به د چا د غاړې هار جوړوې
ناځوانې زه خو دې هیر شوی نه یم
په سره جوړه کې څومره ښکلې ښکارې

***

چې په خبرو قطغن ولګیده
چې د بلۍ په سر کاته ګناه شوه
راځه چې زړونو کې خو مینه وکړو

***

اوس چې اوبه له ورخه تیرې شولې
نادانې لړ دې په خوله لاس کیږده
په یارانه کې خو بنګړي ماتیږي

د درد د څړیکې په څیر لاره وکړه
زما په تول وجود خوره وره شه
لکه پرهر مې زړه کې وغځیږه

***

خیر دی جامو له به پیوند ورکړم
پیزار دې نه وي لوڅې پښې به ګرځم
مګر د خیتې څه چاره وکړمه

# يو بيت

داسې خو مه وايه چې نه به ګورم
ځکه چې دا کرښه زموږ په منځ کې
د ښايستونو خالق نه ده ويستې
نو داسې مه وايه چې نه به ګورم
زه به ورګورم که روژه وي که اختر که برات
ځکه چې دا ښکلي زما د غزل توري دي
يو بيت جوړوي

۷/۱/۲۰۰۰

# جانانه کله

# خو راپیښه وکړه

## ته مې په خوب ليدلې

ته مې په خوب ليدلې
پر افغاني ګڼ دې د سپينو روپو ټل دا سې مزه کوله،
لکه د هسک لمن کې ټل ټل وي د سپينو ستورو
ته مې په خوب ليدلې
لکه زيړی مازيګر،
د ځو شپبو لپاره،
پر کاپينا تو ښکلا و شيندي په منډه تير شي
ته مې په خوب ليدلې
ستا د ښکالو ترنم،
زما په زړه کې نرۍ لاره وکړي
او بنګړو شرنګا دې لپو نه سندرې شيندي
ته مې په خوب ليدلې

په تور پوړني کې دې سپینې لیچې داسې نغښتې،
لکه د اوربد جنګ له سوبې وروسته،
سپاهي تیکې ته توره تیره کاندي
ته مې په خوب لیدلې
د لوی شکست منلو وروسته ما ته لاس راکوې
او د بري لور ته مې و هڅوې
ته مې په خوب لیدلې
زما او ستا ارواوې
د اند ښښنې په نوم څه نه پیژنِي
د ماشومانو خویندو ورونو په څیر لوبې کوې
څه ښکلی خوب و
چې وربښمین لاس دې
د بیالیدو په امید
آن تر تندي پورته کړ
او زه له خوبه ویښ شوم
بیا تر سهاره پورې خوب رانه غلو.

# شاعرانه فطرت

ښايي زما شاعرانه فطرت کې
له زمانو راهيسې
د ښايستونو خالق
د مينې کر کړې وي
شايد همداسې به وي
چې مې د زړه په ځمکه
د نفرتونو تخم نه شين کيږي
او مينه تل په کې ښېرازه اوسي
ځکه په نيمه خوله خندا باندې ټول زړه وبايلم

# غزل

يو څوک گورمه چېرته به وي دنگه ستا په څېر
پېدا به نه شي خدايږو غنمرنگه ستا په څير

د چا ښکلې په لته پسې وتی يم له کوره
کوڅه په کوڅه گرځمه ملنگه ستا په څېر

د وخت غرمو که وسوزوم مينه کې يې پوخ کړم
پر سپينه سينه زانگمه لونگه ستا په څير

يو ته يې چې د ژوند قرار دې ټول راځني يوړو ؟
که بله به پيدا شې شوخه شنگه ستا په څير

د باز په شان شوخي مې په وزرونو کې پيدا شي
کوتره چې مې تېره شي تر څنگه ستا په څېر

۲۸/ ٤/ ۲۰۰۰

# زموږ کلی

ډېره موده وشوله
چې "برکنډو" باندې د وریځو لړې نه ښکارېږي
او د خوړ غاړو کې رېدي راټوکېدلي نه دي

ډېره موده وشوله
د "غره زیارت" ته خلک نه ورخیژي
وایي روسانو یې په لارو کې بمونه ایښي
چې کلیوالو به ثواب لپاره
په لپو لپو ترینه وځښې اوبه
هغه "بزرګه چینه" اوس وچه ده

ډېره موده وشوله
چې د ګودر لارې مو شړې پرتې
ځکه زموږ کلیوال
چېرته په کډه تللي
په بیرته بیا نه راغلل

ښه مې په یاد دي
د مکتب ها ګلالو وړو به
د الفبا سندره
په ازانګو ویله

او دا مې هم یاد برې
چې د ایلبند نه به کوچیان راغلل
زموږ د کلي په شینکي باندې به
د وخت نه مخکې خزان ولګیده
د کلیوالو به یو شور پورته شو.

۳/ ۵/ ۲۰۰۰

# غزل

توره شپه کې ورته جړ مې تور وربـــل دی
خلکه چا د تورې شپې نیولی غـــــل دی

بیا یې ګونځې په تندي کې غځـــــېدلي
بیا چې ښکلی راته نه ګوري څـه چل دی

خبر دی لاړه به شي، لږه سا خـــو واخله
د تلوار دې لا تازه پـــــــرونـــی پل دی

بس دعا کوه لونــــګ چې راپا خه شي
د ځونډیو جوړلـــــو مې تــــــکل دی

بازه دا دې لا څه ټوکې دي را اخیستي
د کوترو په وزرو دې جوړ غـــــزل دی

# غزل

چې په خبرو کې د ناز او ادا قـــــند وتـــړي
ډېر مين زړونه به په زلفو بند په بـــنـــد وتړي

هلته به زه په خپل وجود باندې باور پـــيدا کړم
که د لاس نخښه مې څوک ښکلې په مړوند وتړي

او به او به به کړي زما د زړګـــــي واره شـــاره
که په ګرېوان راته د سپينو اوښکو بند وتـــړي

يو څو درانه سرونه په نېزه کې رانـــــه واخلي
د مرګ قاصد راشي زموږ د کلي ژوند وتـــړي

داسې بدرنګه زمانه خو خدايه را نــــه ولـې
چې د عابد نه تخيل وتړي انـــــد وتـــړي

# بیلتون

زما د ژوند د امیدونو سپین سحر جانانه
سکڼی ماښام درته یادېږي که نه؟
ما نه د ژوند په ورکو لارو مرور جانانه
سکڼې ماښام درته یادېږي که نه؟

له خپله ځانه او جهانه بې پروا ګرځېدو
د ماشومتوب څومره ښایسته دوره وه
چې لاس تر غاړې به له نازه به هوا ګرځېدو
د زلمیتوب څومره ښایسته دوره وه
لاس په نامه به درته زه ومه اکثر جانانه
هغه اکرام درته یادېږي که نه؟

اوس هم ځوانان د خوړ په غاړو کې ټولېږي که نه
زموږ د کلي مازیګر څنګه دی؟
د چټو پیغلو په کې اوس منګي ماتېږي که نه

هغه لمبه لمبه ګودر څنګه دی؟
تا به شراب د موسکا راوړه له کوثر جانانه
د شونډو جام درته یادیږي که نه؟

هغه چې ما و درته جوړ په هنرمندو ګوتو
هغه منګی درسره شته او که نه؟
هغه چې تا به همیشه زما جاګیر ګڼلو
هغه زړګی درسره شته او که نه؟
چیرته پریوتی خو دې نه یم له نظر جانانه
د زلفو دام درته یادیږي که نه؟

ستا د پاولیو د شرنګا چې ترنم نه راځي
اوس مې سندرې سر و تال نه نیسي
ښکلي به ډېر وي خو نظر کې مې یو هم نه راځي
څوک مې دا ستا په څیر په فال نه نیسي
چې ستا دماتو بنګړو توریې وړو په سر جانانه
د باز ناکام درته یادیږي که نه؟

۲۰۰۰/ ٦/ ١٦

# ایډیال

د آرمان زړي مې د زړه پر ځمکه
کلونه وشول چې د چا ښکلې په نوم شیندلي
او وخت په وخت مې پرې د اوښکو بارانونه کړي
خو لا یې تېغ چېرته وهلی نه دی
دا کوم هوښیار سړي رښتیا ویلي
چې په مالګینو اوبو فصل نه شي
نو څه موده به کېږي
چې زه د اوښکو د څڅوبې پر ځای
د خیال مویک را واخلم
انځورومه د چا ښکلې تصویر
وختونه اوړي او زما د تخیل غېږې ته
خپله ځولۍ کې تصویرونه راوړي
د چا ښایست له ټول رنګونه راوړي
زه تصویرونو ته په ځیر ګورم
ښه په دقت ښه په تدبیر ګورم

زما ایډیال یې تصویرو کې نه وي
فطري ښکلا یې په رنګو کې نه وي
خو لا مایوسه نه یم یون کومه
د خپلې ورکې مې لټون کومه
مویک په لاس د چا تصویر جوړوم
لیدلي خوب ته مې تعبیر جوړوم

۲۰۰۰/۷/۱٤

# غزل

چې شرنګ يې د پاوليو شـــــي سندرې زيږوي
دا ښکلې خو خبرو نـــــــه خـــــبرې زيـــــږوي

نظر يې د بنګال په کرتبونو کې پـــــــــوخ کړی
نازونه چې يې سترګې سحرګــــــرې زيـــــږوي

زما د اوښکو څاڅکي بې بـــــــها ، نه دي يارانو
د مينې سمندر کې مــــــــرغـــــلرې زيـــــږوي

ښېتر که ترينه لاړه زموږ غرونه دې ژوندي وي
په غېږه کې ممانې او ګـــــــرګــــرې زيــــــږوي

د وخت سختو سيليو ترينه ټولې بـــــنې وړې
باز غره کې چېرته ناست دی نوې پرې زيږوي

# غزل

له چا به مروره وه هغه د سین په غاړه
څپه چې ورته پښو ته پریوته د سین په غاړه

د سپینې خولې په طمعه یمه چا ښکلې ساتلی
اوس ځکه تېروم هره غرمه د سین په غاړه

ته وا که د لونګو کرونده په کې پخه ده
سحر او مازیګر یې وي ورېمه د سین په غاړه

د سین د غاړې خلک یو په ژبه یې پوهېږو
د زوږ د ترنم یې وي نغمه د سین په غاړه

د مینې یو غمزه مې ارادې کاندي بدلې
اکثر چې رانه ماته شي توبه د سین په غاړه

جانان په تصور کې راته ورو په غوږ کې ویلې
راځه بازه چې جوړه کړو یو شپه د سین په غاړه

# غزل

د خولګۍ له انتـــــظاره بـه راووځـــم
لېونی نه شم لـــه ښـــاره بـه راووځم

د ښایست په وسعـــــتونو کې به ګډ شم
د نغمې غوندې لـــه تـــاره به راووځم
ستا ښکلا به د لـــېمو لـــپو کې وځښم
د عمرونو له خـــمـــاره بـــه راووځم
زه به خپل زړه په اورتون د مینې پوخ کړم
لکه زر له سره انـــګاره بـــه راووځـــم
د چا مینه به مې زړه کـــې لارې وکړي
لکه څړیکه له پـرهـــاره بـــه راووځم

په هوا کې که مـــې بـاز په نظر راغی
د کوترو له کـــتاره بـــــه راووځـــم

# غزل

دې پسې نه يم چې چا څـرنـــګه نظر کــــړی دی
ما خو په زړه باندې اکثر د مينې کـر کــــړی دی

اوس خو د بنګو سره يو ځای لونګ هــــم دودوم
د چا د غاړې لونګين په ما اثـــــر کــــــړی دی

ستا د کوڅې له رقيبانو مې ليمه نــــه ســـوزي
ما هميشه شکايت ستا له پورې ور کــــړی دی

اوس په کې جونې نه ټوليږي څپې ساندې وايي
خو ما سلام د ړنګ ګودر هر مازيـګر کـړی دی

چې مې په خپلو ارادو باندې هم شک پيدا شي
دا مې د ښکلو په وعدو باندې باور کـــړی دی

چې ستا په بده وي راضي وطنه ! مورِ نه، نه دي
ښه په مېــــړانـــه باز له هغو سره شر کړی دی

# غزل

ستا د بنګړو شرنګ راته بلا خبرې زده کـــړلـــې
ما خو ستا خبرو نه اشــــنا خـــبرې زده کـــړلې

څه مې له بې وره میکدې، څـــه لــــه رندانو نه
څه مې د پیالو له جنګېدا خـــبری زده کــــړلـې

اوس به مې په زړه باندې یوه خبره نه پـــــربـــږدم
تا چې په انکار کې په موسکا خبرې زده کـــړلې

ښه تاند زلمیتوب مې د صوفیانو په حلقه کې و
هلته مې د پیر نه د فـنا خــــبرې زده کــړلـــې

چا ته چې مې نیکه مـــشوره لــه زړه نه ورکړله
هغه راته ویلې بازه ! تا خـــبرې زده کـــــړلې

۲۰۰۰/۱۰/۲۱

# غزل

دا نه منم چې نه یم له جانان سره یو ځای
والله هره شپېبه یې له آرمان سره یو ځای

که څه هم څه موده وشوه له یاده یې غافل یم
خو بیا هم راته ځان ښکاري یزدان سره یو ځای

راځئ چې د ژوند ستونزو ته خو لږه غاړه ورکړو
فطرت دی چې ازغي وي او ګلان سره یو ځای

د زړه په للمه ځمکه مې د مینې زړي شنه کړه
د چا یاده راځه خو له باران سره یو ځای

یارانو ویل د باز خوا ته ورځو هلته یې ګورو
سالک او نثار لاړه له کاروان سره یو ځای

# زه لا هاغسې بندي یم

زه لا ماشوم اوم چې مې پلار له لاسه کلک نیولم
ویل یې ما سره زما په کار کې مرسته کوه
ځکه په تا باندې مې لاس سپک وي
ما به لیدل چې مې همځولي ډله ډله له مکتبه وروسته
لېرې باغونو ته چکرله درومي
ما به له ځان سره په زړه کې ویل
عجیبه نه ده چې له پلار سره په بند کې اوسم
بیا به مې پلار ته ویل
پلارجانه ما ته اجازه راکړه چې زه هم د همځولو په څېر،
چیرته چکر ووهم
خو راته پلار به ویل
"زوی جانه هغوی بې غمه دي چې خوشې ګرځي
زما او ستا په تمه لس خولې
د ډوډۍ په انتظار وازې دي"
ما به ویل پلارجانه سمه ده زه کار کومه
اوس چې څه درې لسیزې واوښتلې

ما ته لا ځان د ماشومتوب په څېر بندي ښکارېږي
له شل کلن مهاجرته وروسته
چې خپل وطن ته راغلم
نو دا یاران مې مسافر بولي
او ما ته هم ځان مسافر ښکارېږي
اوس هم هماغه د روزګار غم دی
خو چې بچې مې یاد شي
او زړه مې وغواړي چې کور ته لاړ شم
په خواره خوله له خپل بادار نه اجازه غواړمه

خیرخانه، کابل
د ۱۳۸۲ کال د زمري ۲۷ نیټه

# هوډ

بیګا مې هوډ کړی و
چې زه به دا خپل نامراده ژړګی
د چا په تشه خوله خندا باندې نور و نه بایلم
او نه به چا ښکلې ته، خوږه موسکا وکړم
بیګا مې هوډ کړی و
چې به د تل لپاره
زه د خپل ژوند له کتاب
د چا د نوم توري له بېخه باسم
او بیا به هیڅ کله د چا ښکلې د نوم توري د زړه په ځمکه و نه کرم
بیګا مې هوډ کړی و
چې زه به نور د چا د نوم سره تړلی تعویض
په غاړه نه ګرځوم
ځکه چې نوره عقیده مې باندې پاتې نه ده
بیګا مې هوډ کړی و
که هغه ښکلې مې په مخه راشي
هیڅ به ور ونه ګورم
ځکه چې زه یې په لیدو باندې لمبه لمبه شم

خو چې سهار له خوبه پاڅيدمه
خدای خبر ولې مې زړه وبوږنيده
هغه ښکلو کې مې په سترګو کې راوټوکيده
او په خپل کړي هوډ مې پښې کېښودې.

# غزل

دا نه وایم چې لږ د موسکا جام خــــــو راکــووه
بس دا وایم د تشې خولې سلام خـــــو راکـــوه

د مینې یوه خبره درنه نه غواړم پـــــوهیـــــږې؟
ځو ستغې سپورې ما ته ځــــه د شـــنام خو راکوه

رنګین سهار دې تا ته مـــــبارک وي مـــبارک
خو ما ته یو غمګین غوندې ماښام خــــو راکوه

په مینه خو نه ګورې په غضب خـــــو راته ګوره
د تورو تورو سترګو ځـــــه انــعام خـــو راکوه

د خدای په ویړه ځمکه یې ځای نه شته دی یارانو
کوترې ته دې بازه د زړه بــــــــام خـــو راکوه

# راز

د کال اولې ورځې سترې مه شې،
دا راته وايه چې په خير خو راغلې
خدای دې له ما سره ژوندی لره
دا ړومبی ځل نه دی چې ما باندې احسان کوې
زما په ژوند دا اوه ديرشم ځل دی،
چې خپله ښکلې څيره ما ته ښايې
وايه کنه د کال اوږدو کې خو به،
زما په څير چا ځورولې نه يې؟
چا درته سپکې سپورې نه دي ويلې؟
چا خو به تا نه نفرت نه وي کړی؟
هو،
ته به خبره نه يې،
غواړم چې تا ته يو راز وسپړمه
تير کال چې ته راتللې،
ستا له راتلو نه فقط يو ورځ مخکې
يو چا له ما ځنې نفرت کړی و
يو چا له ما سره سپيڅلی شان تعهد مات کړ،

یو چا زما په پاکه مینه باندې تور پورې کړ
باور دې وشه، په ایمان یې وایم
پرونۍ ټوله ورځ
د پوره کال اندیښنو
یو په یو وځورولم
دومره مې وژړل چې اوښکو مې لمن درنه کړه
شپه راغله شپې په غېږ کې ونیولم
******
خو نن سهار چې زه له خوبه ویښ شوم
د ماهیپر د غره له هسکې څوکې
ستا سورکي لمر راته د وړانګو غبرګ لاسونه راکړل
نو سم له واره مې د زړه غوږ کې شاعر ملګري وویلې:
عابده بس دی تېر په هېر وګڼه
نورې د تېر کال اندیښنې له زړه نه وغورځوه
اوس پوره کال اوښتی
د نوي کال د لمر زرینې وړانګې
درته مینه وایي:
د نوې ورځ تنکۍ شیبې
د کال تر پایه پورې
درته نیکمرغه غواړم

# غزل

څو مره چې زړه باندې مې هر وخت راوریږي جانان
هو مـــره ســـاده دی هـــو مره ژر مـــروریـــږي جانان

سپیـــــنې روپۍ یې په لمن یو ازې شرنګ نه کوي
چې لـــــمر ته وګوري د لمر غوندې پړقیږي جانان

لکـــه چـــې چـــا ورتـــه آمـین کـله ویلی نه دی
چې مـې دُعـــــا غـونـدې له لپو نه تویږي جانان

داسې هم نه ده چې په ما یې ګوندې زړه سوزیږي
چې ما ته وګوري غوسه ورشي سوزیږي جـــانان

بازه ازار د کـــومـــې زاټـــې تـــور وزرې بـــه وي
چـې پـه لـږ څه کـې دې لـه لاسـه ازاریږي جانان

# غزل

لا په پام ږدمه قدم ليـــوني نـــه يـــم
په والله در پسې سم ليـــــونــــى نه يم

بس يو ستا د ياد بتان مې زړه کې اوسي
نور د دېر او د حرم ليـــونـــــى نه يم

سنګباري چې د بڼو زما په زړه کـــړي
اشنا زه خــــو ستـــا د چم ليوني نه يم

ته يې راوړې، زه يې ځکه در نه وا خلم
که نه زه څه کوم غـــــم، ليوني نه يم

له کوترې نه پنجو کې بــــــڼې باسې
"بازه" زه ستا په رقم ليوني نـــــه يم

# له شاعر نه ګیله

ګران کاروان چې د ښاپېرۍ په ورغوي کې شين همځولي ته (د ځنګل د ليک ځواب) ليکه، نو د ځنګ ياران يې په شعرونو نمانځلي وو چې ما ته يې هم لاندينی بيت ويلی و:

کوترې راوړي د نکريزو پاڼه
شي ستا د باز منګولې سرې رايادې

خو کله چې ښاپېرۍ ورغوی پرانيست، د پورتني بيت په شمول ترينه درې بيتونه ښو بدلي وو، خو ما ته يې له شاعر نه يوه ګيله ضرور راوړې وه.

نن مې په زړه باندې بلا وربړې
زما شاعره ! څو خبرې لرم
لږ ورته ښه د زړه غوږونه څک کړه
يو څو ترخې يو څو شکرې لرم

*   *   *

ستا له قلم چې په در در وربدل
د هغو تورو رياضت مې کړی
چې به لاسونه ورته تا غځول
د هغو ستورو رياضت مې کړی

آن له ماښامه تر سهاره پورې

ستا د چنار خبرې ما ژړلي
چې خپه نه شې په ایمان يې وایه
خپلې سندرې کله تا ژړلي
❋ ❋ ❋
چې د سندرو کاروان تا به راوړ
شاعره ما به ترې الهام واخیست
چې میکده به ورته تا ویلې
ما به له هغې څنې جام واخیست
❋ ❋ ❋
که زما پښه به چیرته وښویده
تا به له مینې نه ډک لاس راکړ
چې به له ما نه توري وتوربدل
زما شاعره تا به پاس راکړ
❋ ❋ ❋
چې مې د زړه په خانقاه کې اوسې
پیره ! زما په سر هم لاس تیروه
له زړه مې ټولې کینې ورژوه
کله اذر په صنم لاس تیروه
❋ ❋ ❋
دا یوه ګیله در نه ضرور لرمه

چې څنګه زه د رځنې هېر شو مه
د اوبو سر باندې د خلي په څېر
له یوې څپې بلې ته تېر شوم

* * *

چې په ورغوي کې دې نه ښکارېږي
ښاپېرۍ چېرته ورکې لارې تللي؟
ما په کې خپل تصویر ونه لیدلو
خدای خبر کومې خوا هندارې تللي؟

* * *

بس همدغه درنه پوښتنه کوم
د زړه کتاب نه دې په څه و ایستم؟
شاعره دومره خو بې رنګه نه وم
ولې دې دا رنګه له زړه و ایستم؟

* * *

څوک به اوس راوړي د نکریزو پاڼه؟
چې د کوترو څه پرواز نه شته
ستا د شینکي ځنګل په شنه غېږه کې
هغه د سرو منګولو باز نه شته.

پیښور ابدره روډ عرفان کلتوري مرکز

# رياضت

کله چې ستا د مينې کلکې ريښې
زما د زړه په ځمکه وغځېدې
او ستا د مينې فصل مې زړه کې وټوکېده
د ليونيانو له پاچا نه مې دعا وغوښته
او ستا د مينې د رياضت په ډاډ مې تا ته ويل
در سره مينه لرم
ته اول هيښه شولې
بيا دې مهينې وروځې
د تندې نيم اسمان ته ورسوې
د څو شېبو لپاره، دې خپل باڼه په ځمکه ننه ايستل
او بيا دې خپلې جادوګرې سترګې
زما په سترګو کې راوګنډلې
تا زما سترګو کې د مينې يو توپان وليده
ما ويل چې تا به دا توپان خپلو څپو کې واخلې
او په مهينو شونډو
به راته وايې

چې زه هم درسره مينه لرم
شيبه لا تېره نه وه
چې دې خپل ځان ته پام شو
شونډې دې بوڅې کړې او سر ته دې ټکان ورکړ
راته دې وويلې
ډيره مننه چې له ما سره ته مينه لرې
خو ډېر افسوس کومه
چې ستا لپاره يوه ذره مينه هم
زما د زړه په کور کې ځای نه لري
که دې توان رسي نو زما مينه له خپله ياده وغورځوه
له څه مودې راهيسې
زه ډېره هڅه کوم
چې مې د زړه له ځمکې
ها ستا د مينې ريښې وباسمه
خو لا مې توان نه رسي
لا مې په زړه کې ستا د مينې ريښې پښې کلکوي.

۲۰۰۴ | ۰۶\۰۷\۱
د زرداد سراې د کابل منډه يي

# شرط

ما درته هر وخت ویل
چې ستا فطري ښکلا
د ښایستونو میره
نو دې ته څه اړه یې
چې په فطري ښکلا سرخي او سفیده ومږې؟
تا به ویل چې ته په دې راز باندې نه پوهیږې
دغه سرخي او سفیده د ښایستونو مجبوري وګڼه
او بیا دې دا هم ویل
چې ته زما فطري ښکلا خوښوې
زه به اوونۍ کې یوه ورځ ستا په خاطر
او ستا په اند ، فطري ښکلا کې راځم
خو شرط یې دا دی
چې به نورې ورځې
ما سره کار نه لرې
او ما دې شرط ومنه
بیا مې هغې ورځې ته شپې شمارلې
چې ته فطري ښکلا کې ما ته راشې

هغه ورځ هم راغله
چې ته فطري ښکلا کې ما ته راغلې
په دغه ورځ به بيا زما له مخې
هره بلا چپېده
زه به شله شوم چې سبا ته هم داسې راځې
تا راته ويلې چې تا شرط منلی
که شله ګي دې وکړه
نو شرط به وبايلې تاوان به وکړې
ما شله ګي وکړله
او تا له مانه لاره وشلوله

*****

زه اوس په دې راز باندې وپوهيدم
چې ښايستونه مجبوري هم لري
او دا مې ومنله
چې ما شرط وبايله تاوان مې وکړ
خو دا يوه خبره
را سره ته ومنه
اوس چې ته هره ورځ سرخي او سفيده لګوې
په دې ادا چاته ځواني ورکوې د چا ځواني زړوې.

# غزل

ستا د مـــــينې تور دې وي
د غومره پــــــېغور دې وي

ژوند په نغمو سور دې وي
ستا د بنګړو شــور دې وي
ټول مې غزل تـــــوري دي
ښکلي په هر لـــور دې وي
تل زما په ســـــترګو کې
ستا ښکلی انځور دې وي
تمه د خولګۍ ښـــــه وي
دا مې په تا پـــور دې وي

ژوند په کــې له مينې ډک
بازه کلی کــــــور دې وي

# غزل

سرُ دې شمه، تال دې شمه، ترنګ دې شم
مات دې شم د شنو بنګړيو شرنګ دې شم

پريـــږده چې په سرو غرمو کې پوخ شمه
ستا د ســپـينې غاړې تور لونګ دې شم
مـينه، ميـــنه، مينـــه بـه راوټـــوکي
راشـــه چـــې ليـمو سـره په جنګ دې شم
بس چې لاس مـې ستـا تـــر غاړې ورسي
خپل قد نه مې يو په لـــسه دنګ دې شم
شين دې شمه، وچ دې شمه، وړه دې شم
ستا سپينو لاسونو ته سور رنګ دې شم

تــا تـــــه چې سرور په کې د ميـنې وي
بــــــازه تور لوګی دې شمه بنګ دې شم

# غزل

چُپ به وي او نــــه کــــــوي شور خلک
څو پوري بــــه دلــــــته وي د زور خلک

شـــــته دی چـــــې او ښو ځينې هم نرم دي
شته دی چې په خوله کې ګرځی ء اور خلک

وخت به خپلې چـــــارې وکړي تير به شي
موږ به نه يو دلــــــته بــــه وي نور خلک

يو يې هم زمــــــا د زړګــــي سود نه شو
ډير که مې په زړه کـــــې کړه انځور خلک

سپين د پرښتو لـــــباس پــــه تن ګرځي
دلته چې اکثر ويـــــــنې زړه تور خلک

# غزل

ښکار ته چې ښکاري ننبه په ننبه کړي
دا سې مې پرې ټول نظر راټول کړلو

تا چې پرې مرهم لا سو نه کېښو دل
ما مې پرې د زړه پرهر راټول کړلو

پړق د سپینو لیچو لکه توري شو
تا چې ترینه تور څادر راټول کړلو

دا سې وخت دې راشي چې خلک وو ایي
سولې له نړۍ نه شر راټول کړلو

کلکه باز پنجو کې زرکه و نیوه
بیا یې پرې دا خپل وزر راټول کړلو

د اجمل ختټک د غزل پر ځمکه

# غزل

مرهم لاسونه دې زما پر سينه ږدې او کـــــه نــــه؟
جانه پرهر مې د زړګي راټــــولــــــــوې او که نه؟

زما آرمان ستا د وصال جنګ کې شهيد شو ګـراني
سره لو پټه يې په مــــــزار اوس غوړوې او کـه نه؟

ډېره موده وشوه زما پـه خوب او خـــيال کې اوسې
چيرته په ويښه هم زمـــــا غيږ ته راځـــې او که نه؟

د غلچکيو په څير راشــــــې بيا په مـنډه لاړ شې
د ښکليو ياده ما له ځانه ســـــــره وړې او که نه؟

تا خو له ډېرو په پنجو کـــې بــــــښې وا يستلې
(بازه ) کوترې سره هم ميــــــنه کــــوې او که نه؟

# د مامور د ماندینې ږغ

کله کوم ښه خواړه په ما هم لوروې او کـــــــه نــــــه؟
سپیره مامورہ چې په نس مــــــــــې مــــړوې او که؟

ټیپی مې شنه شوه په ټیپرو پــــــــتاټـــــو ســـړیه
د کوم ترڅکون قطغ مزه په ما څکې او کــــــــه نـــــه؟

چیرته د غوا یا مېښې لرئ که پـــــــه مخـــه درشـــي
راته راوړې یې دا ځواني خو به کوې او کــــــه نـــــه؟

د کابل یخو شپو کې تن برستن کې نه تـــــــو دیـــږي
د جلال آباد نارنج ګوپي راباندې خورې او کــــــه نه؟

په کوم خیرات که چیرته پیښ شوې په ایمان یې وایه
ما ته به وریجې د کورتۍ جیب کې راوړې او کــه نه؟

# غزل

څو مره ژور مې زړه ته کیوتلې
څنګه زړه ور مې زړه ته کیوتلې
ما وې چې ښه ډېر درته وګورمه
په یو نظر مې زړه ته کیوتلې
یو هنګامه مې زړه کې جوړه شوله
په شور و شر مې زړه ته کیوتلې
مینې شتمن دې کړم خیرونه دې وي
لکه سره زر مې زړه ته کیوتلې
واه د ښکلا ملکې څه دې وکړل
څه په هنر مې زړه ته کیوتلې
سکنی ماښام دې راته ښه رنګین کړ
زیړ مازیګر مې زړه ته کیوتلې
د ښکلا بُت دې په کې وتراشلو
لکه آذر مې زړه ته کیوتلې
۲۹\۱۱\۲۰۰۵
خیرخانه- کابل

# پیوستون

کاروان سره د سولې ځو په لور د پـــــیوستـــون
لیدلی دی یارانو ما هم زور د پـــــیوســـــتون

ملي وحدت به بیا زموږ وطـــن کـــې تامینیږي
د هر افغان په خوله کې دی یـــو شور د پیوستون

د امن تر جنډې لانـــــدې ودان بـــه وي تر تله
په مینه باندې جوړ چې وي کوم کور د پیوستون

که خدای کول ولس به مو راټول په یو تغـــر شي
لیدلی مې په خوب کې یو انځور د پیوســـتون

(عابده ) یو نـــــاره له خولی نه باسم د وروری
ادا چې کړمه ژونـــد کې دا یو پور د پیوستون

# غزل

چې ستا کوڅې تــه راغلم
جوړ میکدې تــه راغــلم

په کې توبه مـــــاتیږي
داسې شېبې تــه راغـلم

چـــې مې پــه کانړو ولي
دادی هـــــغې ته راغلم

شعر کې مې شل نه کړل
لنډې کیسې ته راغلم

وی "بازه" پوخ راغـــلې
ما وی یو شپې ته راغلم

۵\۱۲\۲۰۰۵

پېښور

# غزل

تا پـــــسې هـــر دم ګرځي
زړه مې چـــم پـــه چم ګرځي

چیرته چې مـــې زړه غواړي
هلته مې قـــدم ګــــرځي

ستا مینه زمـــا ژونـــدون
تن او سیــــوری سم ګرځي

چـــیرتـــه خو به وګورو
مـــا پســـې صنم ګرځي

ستـــرګې بـــتخانې زما
زړه کـــې مې حرم ګرځي

میـــنه کې عـــابد مدام
جګ سر وړي علم ګرځي
۲/۰۱/۲۰۰٦کابل

# غزل

ښکلو ته ګورم نـــــنـــــداره کومه
خو زړه ته تيـــــر شي خساره کومه

ما يې سبـــــا د ليدو نيت کړی دی
بيګاه تـــه زه استـــــخاره کومه

چې راته کوم ښکلی پـــه مخه راشي
زه د شـــوخـــــې مظاهره کومه

کله به ستا د وصال وس خدای راکړي
اوس غريـــبي ده ګـــــذاره کومه

رانه چارګل رانـــه پيزوان غواړي
ځمه ســـودا له بنـــــجاره کومه

٠٤/٠٢/٢٠٠٦

د کابل منډيي، سرای زرداد

# غزل

ستا د سینې سره په جنګ خونه یم
ښکلیه ! یو موټی لونګ خو نه یم

چې بلا ښکلي مې په ښار کې ساتي
د چا په خیر د چا په منګ خو نه یم

خیر دی که تور لکه د سکور یمه زه
شکر د چا په زړګي زنګ خو نه یم

د زړه ټوټې په ټولو ښکلیو ویشم
زه د یو ښکلې څه ملنګ خو نه یم

لکه د باز په ښکار سترګې سرې دي
جانانه زه روږدی په بنګ خو نه یم

# غزل

چې بې پروانه زه له خپل ځان شومه
ایله چې اوس جانان ته ګران شومه

چې به شمال د چا وربمه راوړله
زه به په باد پسې روان شومه

چا تندی تریو کړ څوک موسکی غوندې شو
د چا رقیب د چا جانان شومه

په نیم نظر چې رانه ټول زړه یوسي
ښکلو ته زه څومره ارزان شومه

کله په بله رانه مخ اړوي
کله یې سترګو کې عیان شومه

# يو درويش ته!

په ازغنو لارې سر وي
او په ييلو پښو مزل کړي
د زخمي لاسونو خاپې
رنګيني د خپل غزل کړي

* * *

ستورې راوړي په لمن کې
دا په چا باندې مين دی؟
چې هوا کې څراغ بل وړي
نو رڼا باندې مين دی

* * *

کوم تصوير ورځنې ورک دی
کاڼي شي ورته هينداري
خپل مرام ته به رسيږي
لټوي چې ورکې لارې

* * *

چې جهان پرې ښايسته شي
د آسمان ستوري اميل کړي

د جانان سپینې سینې ته
د غزل توري امیل کړي
*   *   *
بدرنګئ ته نه ورګوري
ښکلا ټوله کړي راټوله
یو له جنګه یې نفرت دی
خوښوي نړۍ کې سوله
*   *   *
وایي وخت د تورې نه دی
ستن راواخلئ عزیزانو
دا شلیدلی ګریوان ګورئ
دا ګنډل غواړي یارانو
۲۳/۱۱/۲۰۰۶

# غزل

د پسرلي تر ښکلا دنګ جانانه
پر سینه وکړه لونګ جانانه

نن به دې ښه په دیدن ځان مړوم
نن دې تر ډېره یم تر څنګ جانانه

دا چې ډېر ډېر درته ځیر ځیر یمه زه
دا مې بلا ډېر ښکلي بڼګ جانانه

لږ خو راوګوره د خدای په خاطر
لږ خو مې ومنه قلنګ جانانه

کله به ته هم په چا زړه وبایلې
کله به ته هم شې ملنګ جانانه
که مولا تا زما تر خوا راولي
وبه ګټم بایللی جنګ جانانه
۲۶/۱۱/۲۰۰۶کابل

# غزل

مه راکوه غم ستـــــرګـــې راواړوه
ته او خدای صنم ستــــرګې راواړوه

ستا ښکلا به لپې لپـــــــې وڅښمه
ګوره راته سم ستــــــــرګې راواړوه

تل د ستمګرې ادا نـــــــــاز وړمه
نن وکړه کـــــــرم ستــــرګې راواړوه

ټول به دې په سترګو کې راټول کړمه
ته خـــو پـــــه یو دم سترګې راواړوه

ما مې درته زړه په لاس کې ایښی دی
کیږده پرې قـــــدم سترګې راواړوه
۲۹/۱۱/۲۰۰٦ کابل

# د ښکلا رنګونه

زه چې اول اول مېن غوندې شوم
او د رنګونو په مانا لږ و ډېر وپوهېدم
نو ما به داسې ګڼه
چې زېړ رنګونه په رښتیا د مینتوب نښه وي
زما به هله دا باور پوخ شو
چې د مالت جونو به
خپلو ښادیو کې سندرې ویلې
نو دا ټپه یې یې ضرور ویله
(( زه په مین سړي پوهېږم
یا یې رنګ زېړ وي ، یا یې شونډې وچې وینه ))
کله نا کله به مې
یو زېړ بنین د تور کمیس له لاندې واچولو
او د ګریوان تڼۍ مې خلاصې ساتې
او کله کله به مې
زېړ ګل بند په غاړه واچولو
بیا به مې ټول مازیګر

آن تر خړي ماښامه
د ګودر لارې څارې

* * *

اوس چې زما مینتوب
د لیونتوب تر حده ورسیدو
نو د رنګونو دا مانا راته پیکه ښکاره شوه
ځکه چې ته په هر یو رنګ کې راشې
نو ستا له نوره رنګ رڼا واخلي
اوس راته ستا له رویه ټول رنګونه ښکلي ښکاري

۱۱/۱۲/۲۰۰۶

د کابل منډیي
سرای زرداد

# غزل

اوس جانان ته سم کتلی نــــه شمه
ځان ته خو څه غم کرلی نــــه شمه

مینه یې په زړه کې راکــــرلــې ده
مینې نه قسم خــــوړلـی نه شمه

ته چې اوسې هلته ښه چابک ځمه
بل خو اتــه قـــــدم وهلی نه شمه

ستا ښکلا په تورو کې رانغاړمه
مات مې شــه قلم لیکلی نه شمه

# شوخ نظر

داسې په شوخ نظر خو مه راګوره
هسې نه ستا د تورو سترګو له غبار څنې
الماس جوړ شي
زما د زړه په شينکي فصل لکه تندر پريوځي
بيا به مې زړه کې ستا د مينې کرونډې باندې لمبې پورې کړي
د کابل منډيي، سراى زرداد
٢٠/١٢/٢٠٠٦